د کتاب پېژندنه

|||||||||||||||||||||||||||||||

کتاب :: فضل الباري د بخاري شريف پښتو شرحه

ليکوال:: علامه محمد معين الدين ابوالفضل

خپرونکي :: د بېنوا پاڼه

دخپريدو طرز :: پرلپسې لړۍ

کمپوز/ ډيزاين ::خپله ليکوال

بسم الله الرحمن الرحیم.

## بخاری شریف اودشرحي فضل الباري لړی (۱) برخه

الحمدلله وکفي والصلوة والسلام علي عباده الذين اصطفي.

صـراط مـــستقیم مسلــــمینان ـــــ نمانده بعدفرقان جزبـــخاري

بخاري کرده است ازحسن نیت ـــــ دعايې مغفرت درشان قاري

دعاهايې بخاري مستجاب است ـــــ گمـــان راتـودرين دعوت چه داري

---

هرقدم په رهبري دعلم اخله ـــــ ابوالفضله که دي خداي ته زړه مائل وي

امابعد: له دغي شرحي څخه دبخاري شريف چي فضل الباري يې نوم دئ گرانواستفاده کونکو ! له مخه تردي چي داسلام دپیغمبر درحمت للعالمين رسول دمقدسواحاديثو کوم چي امام بخاري (رحمه الله تعالي) په خپل کتاب بخاري شريف کښي راجمع کړيدي په شرحه اوپه تفصيل اوتحقيق پيل کوم ددغي شرحي کيفيت اوڅرنگوالئ درته بيانوم .

محترمو په دغه شرحه کښي چي کوم بنيادي اواساسي امور په فهم کښي نيول سويدي هغه په دي ډول دي .

)۱ (دحديث دهرلفظ ترجمه په داسي ډول چي هرڅوک په پوه سي اواستفاده ورڅخه وکړي.

)۲ (بيان دمناسبت دحديث له ترجمة الباب سره.

)۳ (بيان دتطبيق دمذهب اودحديث.

)۴ (دفعه دتعارض کچيري دغه حديث معارض حديث درلودئ.

)۵ (بيان دهغو مسئلو چي له مطلوب حديث څخه رامستنبطي سويوي.

)٦ (بيان دهغوکتابودحديثوچي دامام بخاري رحمه الله تعالي دکتاب په ډول په دوی کښي هم دهمدغه حديث روايت سويوي.

)۷ (علمي اوصرفي اونحوي اوبلاغي تحقيق دالفاظودحديث ،البته داضرور نه ده چي دهرحديث په تشريح کښي به دغه ذکرسوي ټول امورتحقق ومومي ، بلکي د اکيدای سي چي ديوه حديث تشريح به له ځني ددغواموړو څخه خالي وي ،پاته سو بيان دسند اودراويانو دحديث نو ودي ته زه په دغه شرحه کښي هيڅ اشاره نکوم الاماشاءالله ،ځکه

چي یوخوپه دي باره کښي ځانته کتابونه جوړسویدي ،ودغه کارته په هغووختوکښي ضرورت ؤ چي احاديث به یودبله پیاد زده کیدل ،اوراویان دحدیثو اواحوال ددوی چنږل سوي اوپه کتابو کښي مثبت سوي نه ؤ ، تردي دمخه چي دبخاري شریف دکتاب دابتدائي الفاظو شرحه پیل کوم یوڅومقدماتي بیانونه کوم چي ترعامواحادیثو اوترټولوکتابو داحادیثوتعلق لري.

)۱ (پوسه چي یومطلق علم حدیث دئ، اودوهم علم روایت الحدیث دئ ، دریم علم درایةالحدیث دئ، اوڅلورم علم اصول حدیث دئ ،دمطلق علم حدیث تعریف په عربي ژبه په دي دول دئ. ( هوعلم یُعرف به اقوال رسول الله صلي الله علیه وسلم وافعاله واحواله)

)الکرماني ج۱ص عمدة القاري ج۱ ص۱۲ (

یعني مطلق علم حدیث عبارت دئ له علم څخه په قولودرسول علیه السلام اوپه فعلواوکارو دده اوپه احوالودده.

اودعلم روایة الحدیث تعریف په عربي ژبه په دي ډول دئ:

)هوعلم یشتمل علي نقل افعال رسول الله صلي الله علیه وسلم واقواله وصفاته وتقریراته(

تدریب الراوي ج۱ ص۲۰

یعني علم دروایة الحدیث هغه علم دئ چي مشتمل وي پرنقل کولوباندي دفعلودرسول علیه السلام اودقولودده اودصفتودده اودتقریرودده.

پوسه! چي دنبي علیه السلام فعلونه اوقولونه اوصفتونه خووبیان ته حاجت نه لري سره له دي چي په بل ځاي کښي بې وضاحت راسي ،اوتقریردرسول علیه السلام ودي ته ویل کیږي چي ده مبارک ویوچاته پریو کارباندي مثلاً قرارورکړیوي، په دي معني چي دده په حضورکښي یوچایوکارمثلاً کړیوي اوده مبارک پرهغه چاباندي انکارنه وي کړئ.

اودعلم درایة الحدیث تعریف په عربي ژبه په دي ډول دئ :

هو علم یشتمل علي شرح اقوال رسول الله صلي الله علیه وسلم وافعاله وصفاته ویعلم به طُرق استنباط الاحکام ویعرف به ترجیح الراجیح منها والتطبیق بین الاحادیث.

هکذایفهم من تدریب الراوي ج۱ ص۴۰

یعني ددرایة الحدیث علم هغه علم دئ چي مشتمل وي پرشرحه اوپربیان باندي دقولواودفعلواودصفتو درسول علیه السلام،اوپیژندلي کیږي په ده سره لاري دراایستلو دشرعي احکامواودارنګه پیژندل کیږي په ده سره ترجیح دهغه حدیث چي راجح وي له نورواحادیثو څخه ، اودارنګه پیژندل کیږي په ده سره تطبیق په منځ کښي داحادیثو.

اودعلم اصول الحديث تعريف په عري ژبه په دي ډول دئ:

)هوعلم بقوانين يعرف بها احوال السند والمتن(

اويا په دي ډول :

هوالعلم بالقواعدالمعرِّفة بحال الراوي والمروي(

تدريب الراوي ج۱ص۴۱ ـــــ

يعني علم اصول الحديث علم دئ په داسي قوانينواوكلي قاعدوچي دهغوی په سبب پيژندل كيږي احوال دسند اود متن دحديث ،ياعلم اصول الحديث پيژندنه دداسي قاعدوده چي ورپيژندونكي وي دحال دراوي دحديث اودمروي چي حديث دئ.

پاته مقدماتي بيانونه به په (۲)برخه كښي انشاءالله درته راسي.

## بخاری شریف اودشرحي فضل الباري لړۍ (۲) برخه

بسمه تعالی . محترمووروڼو ددي لړي په اوله برخه کښي دحديثو دڅلور قسمه علومو په عربي ژبه تعريفونه اودهغوی ژباړه موږوتاسي ته بيان کړه په دي برخه کښي ځني نورمقدماتي بيانونه درته کوم چي ددغه ټول بيانونه کوم چي په دغه برخه کښي درته راځي دتيري برخي له توضيح اوله اتمام سره تعلق لري.

اول بيان په قول اوپه فعل اوپه صفت اوپه تقريرکښي درسول الله صلي الله عليه وسلم دي.

پوسه چي قول درسول الله صلي الله عليه وسلم دده مبارک ومبارکوارشاداتو اووېناؤ ته ويل کيږي لکه دا ارشاد دده مبارک چي ( الدين النصيحة ) رواه مسلم ج۱ص۵۴ اوترمذي ج۲ ص۱۴ اونسايي ج۲ص۵۸۱،او احمد په مسندخپل کښي ج۱ ص۳۵۱.

يعنی دين نصيحت اوخيرخواهي دئ، يعني په دي معني چي مسلمان به خير خواه وي هم به دخداي خيرخواه وي اوهم به درسول خيرخواه وياو هم به دخداي دکتاب قران کريم خيرخواه وي، اوهم به دنيکوامامانو اواميرانوخيرخواه وي، اوهم به دعامومسلمانانوخيرخواه وي.

افعال درسول عليه السلام:

وهغوکاروته دده مبارک ويل کيږي کوم چي له ده څخه صادرسوي وي اوده مبارک کړيوي لکه په دغه مبارک حديث کښي چي (ان رسول الله صلي الله عليه وسلم جَمع في حجة الوداع المغرب والعشاء بالمزدلفة)بخاري ج۱ ص۲۲۷،اومسلم ج۱ ص۴۱۷

يعني بيشکه رسول الله عليه وسلم سره جمع کړل په حجة الوداع کښي دماښام اودماخستن لمونځونه په مزدلفه کښي يعني دماښام اودماخستن لمونځونه يې دواړه په مزدلفه شريفه کښي دماخستن په وخت کښي وکړل.

احوال درسول عليه السلا م:

احوال درسول عليه السلام عبارت دي له صفاتوڅخه درسول عليه السلام ، اوصفات درسول عليه السلام دوه قسمه دي ،اول اختياري صفتونه، اودوهم غيراختياري صفتونه ، اختياري صفتونه دده مبارک له رحمت اوشفقت دده دالله جل جلاله پرمخلوق باندي اولکه عبادت اوتواضع اوحلم دده مبارک ،اوغير اختياري صفتونه دده مبارک عبارت دي دده مبارک له جسماني صفتوڅخه ،لکه دمثال په ډول دا چي دي مبارک ميانه قده ؤ وغيره.

پوسه چي علماءدعلم رواية الحديث دده مبارک ددغودواړوقسموصفتوروايت اوذکرکوي ، اوفقهاءرحمهم الله تعالي تنها دده مبارک له اختياري صفتوڅخه بحث کوي داپه دي سبب چي ددوی مقصد ترهغوصفتوپوري داسلام دپيغمبرتعلق لري کوم چي له دوی څخه د شرعي احکامواستنباط کيږي اوهغه دده مبارک اختياري صفتونه دي.

تقاريرياتقريرات درسول عليه السلام:

دتقرير دلفظ جمع ده ،تقرير په اصل کښي دتفعيل دباب مصدر دئ چي په معني د قراروركولو دئ ،او په عام عرف کښي تقرير بيانول دي دمعني په عبارت سره لکه تحريرچي بيانول دمعني په کتاب سره دئ، دمحدثينو په اصطلاح کښي تقرير درسول عليه السلام ودي ته ويل کيږي چي يوه داسي شخص به چي دشريعت به تابع ؤ درسول عليه السلام په حضورکښي يوکاروکړاويابي يوه خبره وکړه اورسول عليه السلام به په هغه کار ياخبره باندي سکوت وکړ ،اوپرهغه باندي بي انکارونکړ نوودغه سکوت ته دده مبارک تقرير ويل کيږي.

پوسه چي سکوت درسول عليه السلام پريوه کاريايوه خبره باندي حجت اودليل دصحت اوجواز دهغه کاراودهغي خبري دئ اودارنگه دهرنبي سکوت هم دغه حکم درلودئ ،مگر پرته له نبي څخه د بل هيچا سکوت حجت اودليل نسي گرځيدلای.

لمعات التنقيح ج١ ص٢٢

دوهم بيان په موضوع کښي دعلم حديث دئ.

پوسه چي دموضوع لفظ په اصل کښي کښي داسم مفعول صيغه ده چي وايښول سوي شي ته ويل کيږي ،اودغه لفظ دحکماؤ په اصطلاح کښي وهغه محل ته ويل کيږي چي له هغه شي څخه مستغني وي کوم چي په ده کښي يې حلول کړيوي چي عربي تعبير يې په دي ډول دئ.

(الموضوع هوالمحل المستغني عن الحال) دمثال په ډول انسان موضوع بلل کيږي ،اودده رنگ اوصفتونه اعراض بلل کيږي.

اودمنطيقيانوپه اصطلاح کښي موضوع واول جزته د قضيې حمليې ويل کيږي کومه چي نحويان ورته جمله اسميه خبريه وايي ،لکه زيد قائم په دغه جمله کښي دزيدلفظ موضوع بلل کيږي اودقائم لفظ ته ددوی په اصطلاح کښي محمول ويل کيږي.

اودنحويانو په اصطلاح کښي موضوع وهغه شي ته ويل کيږي لفظ وي اوکه غير لفظ وي چي ديوي معني دپاره وضعه سوئ وي.

اوپه مشترکه اصطلاح کښي دټولوعلومو موضوع دعلم وهغه ته ويل کيږي چي په دغه علم کښي ددي له ذاتي عوارضوڅخه بحث کيږي کوم چي عبارت دي له هغوصفاتو اواحوالوڅخه ددغي موضوع چي ودي ته يعني ودغي موضوع ته ددي دذات له وجي يادذي دمساوي له وجي عارض سويوي.

علامه کرماني فرمايلي دي چي موضوع دعلم حديث ذات درسول عليه السلام دئ ، يعني په دي حيث چي دي رسول دئ.

پوسه چي ذات درسول عليه السلام له دي حيثيته چي دي رسول دئ دمطلق علم حديث موضوع دئ نه دعلم رواية الحديث ځکه چي موضوع دعلم رواية الحديث مرويات اوروايات دي له حيثيت څخه دمتصل والي دحديث اودمنقطعوالي دده په اعتبار دسندسره.

مقدمة اوجزالمسالک ص۷

اوموضوع دعلم درايةالحديث هم روايات او مرويات دي خومگر له حيثيته دشرحي اودبيان دالفاظو دمروياتواو له حيثيته داستنباط داحکامو شرعيه ؤله دوی څخه.

اوموضوع دعلم اصول الحديث دحديث متنونه اودحديث سندونه دي.

دريم بيان په غرض اوپه غايه کښي دعلم حديث دئ.

پوسه چي غرض وهغه ته ويل کيږي چي دهغه دتحصيل په وجه ته يوفعل اوکار وکړي اوغايه وهغه ته ويله کيږي چي ستاپرکا رباندي مرتبه سي دمثال په ډول ته وبازارته ددي دپاره ولاړ سي چي يوشي رانيسي نودغه تگ چي تاوبازارته ددغه شي درانيولودپاره وکړنووتاته ذوالغرض اوستا ودغه تگ ته ذوالغاية ويل کيږي ،اورانيول ددغه شي چي وتاته منسوب کړي نوغرض ورته ويل کيږي ،اوچي ستاودغه کارته يې منسوب کړي نو غاية ورته ويله کيږي.

دعلم حديث غرض اوغاية فَوزاوبري دئ په سعادت ددارينو.

کرماني ج۱ ص۱۲.

اوځنوعلماؤفرمايلي ي چي غاية اوغرض دعلم حديث مشابهت پيداکيدل دي دنبي عليه السلام له اصحابو سره ،ځکه چي اصحابوبه درسول عليه السلام حديثونه اوريدل اوپيادول بي اونوروته بي رسول نويوڅوک چي په علم حديث مشغول وي نوهغه هم په دغوصفتوسره موصوف گرځي.

نورمقدماتي بيانونه به په(۳)دريمه برخه کښي درته راسي.

## بخاری شریف اودشرحي فضل الباري لړۍ (۳) برخه

بسمه تعالي.

محترمو کتونکو په دي برخه کښي دمقدماتي بيانوله جملي څخه په باره کښي داقسامو اودانواعو دکتابو داحاديثوبيان درته کوم.

پوسه چي داحاديثوعلماؤ داحاديثو کتابونه وډيرواقساموته تقسيم کړيدي چي تفصيل يې په لاندي ډول دئ.

اول قسم جوامع دي.

جوامع جمع دجامع دئ اوجوامع د حديثو وهغو کتابوته ويل کيږي چي په دوی کښي داتو ۸ مضامينو حديثونه راوړل سويوي چي هغه اته ۸ مضمونونه په دغه شعر کښي ذکر سويدي.

سير،اداب ،تفسير، عقائد ـــــــــــــــــــ فتن،احکام ، اشراط ،ومناقب.

له سير څخه مراد دجهاد اودغزاگانو حديثونه دي ، له اداب څخه مراد هغه حديثونه دي چي ترمعاشرتي امورو پوري تعلق لري ، له تفسير څخه مراد هغه حديثونه دي چي دقران کريم ترتفسير پوري تعلق لري ، اوله عقائدڅخه مرادهغه حديثونه دي چي ترايماني امورو‌پوري متعلق وي، اوله فتن څخه مرادهغه حديثونه دي چي په هغوی کښي داسلام پيغبر وخپل امت ته له راتلونکو حوادثو اوفتنوڅخه پيشگويې کړيوي ،اوله احکام څخه مرادهغه حديثونه دي چي په هغوی کښي دفقهي حکمونه بيان سويوي ، اوله اشراط څخه مراد هغه حديثونه دي چي په دوی کښي دقيامت دورځي دعلامو ذکرراغلئ وي ، اوله مناقب څخه مراد هغه حديثونه دي چي منقبتونه اوفضيلتونه دصحابه ؤ پکښي بيان شويوي، پردي خبره باندي اتفاق دئ چي بخاري شريف،او ترمذي شريف دجوامعوکتابو له جملي څخه دي ،البته د مسلم شريف په باره کښي دځنوعلماؤ قول دادئ چي دجوامع له جملي څخه نه دئ ځکه دتفسير په ارتباط چي کوم حديثونه په مسلم شريف کښي راغلي دي نو هغه ډير کم دي ،خو صحيح قول دادئ چي مسلم شريف هم له جوامع څخه دئ ،ځکه که څه هم هغه حديثونه چي امام مسلم په کتاب التفسير کښي راوړيدي کم دي مگر که دتفسير په اړه وهغوټولورواياتو ته وکتل سي کوم چي په مسلم کښي په مختلفو ځايو کښي ذکرسويدي نوبيا دتفسيررواېتونه دمسلم شريف هم وکافي مقدارته رسيږي.

دوهم قسم دکتابو داحاديثو سنن دي.

سنن وهغه کتابو ته داحاديثو ويل کيږي چي په دوی کښي احاديث دفقهي دبابوپه ترتيب ذکرسويوي لکه سنن ابي داود ، اوسنن نسائی ، او جامع ترمذي ، ترمذي شريف سره له دي چي دجوامع له جملي څخه دئ دسنن له اقسامو څخه هم دئ.

دريم قسم مسانيد دي.

مسانددحديثو وهغوكتابوته ويل کيږي چي په دوی کښي حديثونه دصحابه ؤ په ترتيب راوړل سويوي ، اوترتيب دصحابه ؤ ځنو علماؤ دحروف تهجي په اعتبار معتبر کړيوي ،دمثال په ډول دکوموصحابه ؤ په نومونو کښي چي اول حرف همزه راغلئ وي نودوی دهغوی روايتونه دمخه ذکرکړيوي اودکوموصحابه ؤپه نومونوکښي چي ( ب)راغلي وي نو بياپې دهغو روايتونه ذکرکړيوي ، وهکذا.

اوځنوعلماؤ بيا ترتيب ددوی ددرجواومرتبو اومقاماتو په اعتبار معتبر کړيدئ په دي ډول چي مثلاً اول يې دخلفايې راشدينو روايتونه ذکرکړيوي بيا يې دعشره مبشره ؤروايتونه ذکرکړيوي ا و

بيايې دهغو صحابه ؤ روايتونه ذکرکړيوي کوم چي دبدر وغزاته حاضر سويوه چي بدريين ورته ويل کيږي ، اودريم يې دهغو اصحابو روايتونه ذکرکړيوي چي په بيعت رضوان کښي يې شرکت کړيوو ،وهکذا.

اوځني علماوو بيا دصحابه ؤ ترتيب دقبيلو په اعتبار معتبرکړيوي په دي ډول چي اول يې دبني هاشم دقبيلي داصحابو روايتونه ذکرکړيوي اوبيا يې دهغي قبيلي داصحابو روايتونه ذکرکړيوي کومه چي دبني هاشم وقبيلي ته په قرابت کښي نږدي وي وهکذا.

په مساندوکښي ترټولو ډيرمشهورمسند، مسند دامام احمد بن حنبل رحمه الله تعالي دئ.

تنبيه : پوسه چي دمسند دلفظ اطلاق کله کله پرهغه کتاب باندي هم کيږي په کوم کښي چي مسند اومرفوع حديثونه ذکرسويوي په همدي وجه وبخاري شريف ته المسند الصحيح للبخاري ، اووسنن دارومي ته مسنددارومي ويل کيږي.

څلورم معاجم دي.

حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله تعالي په عجالة نافعة کښي ذکرکړيدي چي دمحدثينو په اصطلاح کښ معاجم داحاديثو وهغوکتابوته ويل کيږي چي په دوی کښي حديثونه دمشائخو اوداستاذانو په ترتيب ذکرسويوي خو ځينو دغه ترتيب دتقدم في الوفات په اعتبارمعتبر کړيدي په دي ډول چي کوم استاذ يې دمخه وفات کړيوي نو دهغه حديثونه يې دمخه ذکرکړيوي ،وهکذا،اوځنوبيا دمشائخو ترتيب دمشائخودعلم اوفضيلت په اعتبار اوځنوبيا دحروف تهجي په اعتبار معتبرکړيوي خو اخيري طريقه په عمومي ډول رائجه ده ، اوحضرت مولانا محمد زکريا صاحب بيا فرمايلي دي چي معجم وهغه کتاب ته ويل کيږي چي په ده کښي دحروف تهجي په ترتيب حديثونه ذکرسويوي، بيادا پردري قسمه دي، اول قسم يې دادئ چي ترتيب دحروف تهجي ؤيې دصحابه کرامو له نومو څخه معتبرکړيوي ، دوهم قسم يې دادئ چي دشيوخو اواستاذانوله نومو څخه يې دحروف تهجي ترتيب رااخستئ وي ،اودريم قسم يې دادئ چي داحاديثو له حروفو څخه يې دحروف تهجي ؤترتيب اخذکړيوي.

پنځم قسم مستدرکات دي.

مستدرکات وهغو کتابوته دحدیثو ویل کیږي چي په هغوی کښي هغه حدیثونه راوړل سویوي

چي هغه دیوه بل مصنف کوم چي په حدیثو کښي یې کتاب جوړکړیوي پرشرط باندي برابر وي مګر هغه قصداً یا سهواً هغه حدیثونه په خپل کتاب کښي نه وي راوړي لکه مستدرک دحاکم علي الشیخین.

شپږم قسم مستخرجات دي.

مستخرج وهغه کتاب ته دحدیثو ویل کیږي چي دده مصنف دیوه سابق مصنف دکتاب حدیثونه اوروایتونه په خپل کتاب کښي په خپل سندسره راوړیوي نه دسابق مصنف په سند سره په دي ډول چي سابق مصنف دده په سند کښي نه وي راغلئ بلکي دده سند ده سابق مصنف له شیخ یا له شیخ الشیخ سره مثلاً ګډ سویوي.

اوم اجزاء دي.

اجزاوهغوکتابوته ویل کیږي چي په دوی کښي یا ده یوه سړي مرویات اوحدیثونه ذکر سویوي عام له دي څخه که دغه یوسړي له صحابه ؤ څخه وي یا ددغه مصنف له مشائخو څخه وي لکه جزدحدیث دابوبکر رضي الله تعالي عنه ،اویا په دوی کښي دیوي جزئی مسئلئ مربوط حدیثونه ذکرسویوي لکه جزء رفع ا لیدین.

اتم قسم اربعینات دي.

اربعینات وهغوکتابوته ویل کیږي چي صرف څلویښت حدیثونه په دوی کښي راوړل سویوي .

:تنبیه : پوسه چي اربعینات کتابونه ځکه علماء کرامو تصنیف کړیدي چي داسلام پیغمبرصلي الله علیه وسلم فرمایلي دي.

(من حفظ علي امتي اربعین حدیثاً في امر دینها بعثه الله فقیهاً وکنت له یوم القیامة شافعا وشهیداً) رواه البیهقي في شعب الایمان ج۲ص۲۰۷ و۲۷۱

یعني هرچا که حفظ کړل پر امت ځما باندي څلویښت حدیثونه په باره کښي دکار ددین دامت زما نودقیامت په ورځ به مبعوث کړي دي الله پاک په داسي حال کښي چي فقیه به وي، یعني په جمله کښي دفقهاؤ به وشمیرل سي اوسم به زه ده لره په ورځ کښي دقیامت شفاعت کونکي اوشاهد.

پوسه چي دغه حدیث که څه هم علماؤ ضعیف ګڼړلي دئ خو حافظ جلال الدین سیوطي په جامع صغیر کښي دغه حدیث مبارک ذکر کړیدئ اودصحت علامه یې ورکړیده په دي سبب چي ددغه حدیث په ډیرو سندو سره روایت سویدئ نودسندودکثرت په اعتبار له ضعف څخه خارج سویدئ.

نهم قسم علل دي .

علل وهغه قسم ته دکتابو دحديثو ويل کيږي چي په دوی کښي دهر حديث ټول سندونه اواختلاف دراويانواوخفي علتونه ذکرسويوي.

لسم قسم اطراف دي .

اطراف وهغو کتابو ته دحديثو ويل کيږي چي په دوی کښي داحاديثو يوه يوه برخه ذکر سويوي او داپکښي ويل سوي وي چي دغه حديث مثلاً په فلان اوفلان کتاب کښي په فلان او فلان ځای کښي مذکوردئ.

يوولسم قسم ترغيب اوترهيب دئ.

اودوولسم قسم مسلسلات دي.

اوديارلسم قسم ثلاثيات دي.

اوڅورلسم قسم کتب العقائد دي

اوپنځلسم کتب الاحکام دي.

اوشپاړسم قسم کتب التاريخ دي.

اواولسم قسم کتب الزهددي.

اواتلسم کتب الاداب دي..

نولسم کتب الفتن دي .

اوشلم قسم کتب المناقب دي.

يويشتم قسم کتب مشيخه دي.

دويشتم قسم کتب الافراد والغرائب دي.

محترممو مستفيدينو څلورمه اوپنځمه برخه لا په مقدماتي بيانو کښي ده له هغه څخه وروسته به انشاء الله دبخاري شريف دشرحي لړی پيل سي.

## بخاری شریف او د شرح فضل الباري لړۍ (۴) برخه

بسمه تعالي.

محترمولوستونکو دګمراه ډلو له جملي څخه یوه ډله داسي ډله ده چي دمنکرین حدیث په نامه سره یادیږي دغه ډله دنبي علیه السلام له احادیثوڅخه منکره ده ،او په احادیثوعمل کول جائزنه ګڼي البته دغه ګمراه ډله بیا په خپل منځ کښي هم پرمختلفوډلوباندي تقسیم سویده ، دوی دخپل دغه فاسد مسلک دپاره له ځان سره خورا ډیر باطل دلیلونه لري چي مکمله توضیح به ددي په خپل مناسب ځای کښي انشاءالله درته راسي ،ددوی له ډیرومهمو دلائلو څخه یودلیل دادئ چي دنبي علیه السلام داحادیثو تدوین دده مبارک له وفات څخه دوه سوه یادوه نیم سوه کاله وروسته سویدئ ،یعني هغه وخت چي دامام بخاري ، امام مسلم ، امام ابوداود ، امام نسائي ،اوامام ابن ماجه وغیرهم رحمهم الله تعالي زمانه راغله نوداحادیثوتدوین وسو ،نوپه دي سبب احادیث قابل دقبول نه دي، نوپه دي خاطر چي ددغوګمرهانو ددغي خبري کذب اوبطلان درته واضح سي نوځني نمونی دتدوین اودلیکني درسول علیه السلام داحادیثوکومي چي داصحاب کرامو په زمانه کښي داصحاب کراموپه لاسوسره سویدي درته ذکرکوم خوله مخه تردي دوي مهمي خبري درته کوم.

اوله خبره دا ده چي داسلام د پیغمبر اودصحابه ؤ په زمانه کښي دنبي علیه السلام دحدیثونودحفاظت اودخوندي کولو دپاره اصحابو دري لاري په کاراچولي وي ،اوله لارداوه چي دنبي علیه السلام احادیث بي په خپلوذهنواوپه زړو کښي په مضبوط ډول حفظ کول اوپیادول بي وعربوته په فطري ډول الله پاک ډیري طاقتوري اوبي مثاله دحفظ قوي ورکړیوي اوکله چي بیا دوی په اسلام مشرف سول نوپه دي باره کښي نورهم مضبوط وګرځیدل ،اودوهمه لار دتعامل لاروه ، یعني هرحدیث چي به دوی له نبي علیه السلام څخه واوریدئ نو په حتمي ډول بې دهغه په مقنضي عمل کاوه ، اودریمه لار داوه چي ځینوددوی به دنبي علیه السلام دمبارکواحادیثو تحریراولیکنه هم کوله.

دوهمه خبره داده چي له نبي علیه السلام څخه داسي روایتونه اوحدیثونه هم راغلي دي چي هغه پردي باندي دلالت کوي چي داسلام پیغمبر خپل اصحاب له تدوین اوله لیکني داحادیثوڅخه منعه کړیوه دمثال په ډول په مسلم شریف کښي له حضرت سعید خدري رضي الله تعالي عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلي دي .(لاتکتبوا عني ومن کتب عني غیرالقران فلیمحه حدثوا عني ولاحرج ومن کذ ب علي متعمداً فلیتبوء مقعده من النار )

یعني مه لیکئ تاسي له ماڅخه یعني حدیثونه زما اوهرچا که لیکلي وي له ماڅخه غیرله قرانه ،یعني نور شیان نومحوه اوخراب دي کړي ،او نقل دروایت اودحدیث کوئ له ماڅخه اوپه دي کښي هیڅ حرج اوممانعت نسته اوهرچاکه وویل دروغ پرماباندي په داسي حال کښي چي تعمدکونکئ ،قصدکونکئ ؤ په دغه دروغ ویلو کښي نوودي نیسي ځای خپل له اورڅخه ددوږخ.

همدارنګه ددترمذي شريف په دوهم جلد (۱۰٦)صفحه کښي له حضرت سعيدخدري رضي الله تعالي څخه په دي مضمون روايت سويدئ چي ده ويلي دي چي ما له رسول عليه السلام څخه دحديثو دکتابت اجازت وغوښتئ نوده مبارک وماته اجازت رانکړ، دارنګه دمسند امام احمد په پنځم جلد (۱۸۲) مخ کښي له حضرت زيدبن ثابت څخه په هم دغه ډول روايت سوی دی خو له دي سره سره داحاديثوپه معتبروکتابوکښي داسي حديثونه هم موجوددي چي داسلام پيغمبرداحاديثو دکتابت اجازه واصحابو ته کړيده بلکي پدي باندي هم دلالت کوي چي ده مبارک به واصحابوته داحاديثو پرليکنه باتدي باعثتوب ورکاوه نوعلماء کرامو اومحديثينو فرمايلي دي چي احاديث دمنع دکتابت محمول دي پرابتداء داسلام باندي اومنسوخ سويدي په هغو حديثوسره چي داحاديثو دکتابت پراجازه باندي دلالت کوي مکمل تفصيل به ددي هم په خپل ځای کښي درته راسي دلته دغه قدرکفايت کوي.

درخانه اګرکس است ـــــ يک حرف بس است

اوس وهغوليکنوته ځيرسئ کومي چي نبي عليه السلام يا صحابه ؤ دنبي عليه السلام داحاديثو کړيدي .

درسول عليه السلام اودصحابه کرامو په زمانه کښي تر (۱۱۰) هجر ي سني پوري داحاديثومبارکه ؤد تدوين اود کتابت بيان.

)۱ (کتاب صدقه .

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايې چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل

ژوندپه اخري ورځوکښي وخپلوحاکمانوته دليږلو دپاره کتاب الصدقه تيار کړئ وو چي په هغه کښي دحيواناونودزکات مسئلي وي .(ترمذي)

)۲ (صحيفه عمروبن حزم

رسول الله صلي الله عليه وسلم ديمن وګورنرياوالي عمروبن حزم رضي الله تعالي عنه ته يوه صحيفه ليږلي وه چي په هغه کښي دقران کريم دتلاوت ، لمونځ ، زکات ، طلاق دغلام ازادولو، قصاص ،ديت فرائض (د ميراث مسئلي) سنن اودکبيره ګناهونو تفصيل ليکل سوئ وو.

احمد ،ابوداود ،نسائي دارقطني ،دارمي ،حاکم ،

)۳ (صحيفه علي رضي الله تعالي عنه.

رسول الله صلي الله عليه وسلم وعلي رضي الله عنه ته يوه ليکلي سوي صحيفه ورکړي وه چي دهغي صحيفي په باره کښي به علي رضي الله تعالي عنه فرمايل چي،،قسم په الله دئ زماسره دويلوليکلو بل کتاب نسته ماسوي دالله پاک

دکتاب څخه اوددي صحيفي څخه، داماته رسول الله صلي الله عليه وسلم راکړيوه په دي کښي دزکوة مسئلي ذکرسويدي.

احمد (

)۴ (صحيفه وائل بن حجر رضي الله تعالي عنه.

وائل بن حجررضي الله تعالي عنه چي کله خپل وطن حضر موت ته تلئ ، نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم دهغه لپاره دلمانځه ، زکات ، روژې، نکاح ،سود ، شراب وغيره په مسئلوباندي مشتمله صحيفه تياره کړه اوهغه ته يې ورکړه.

)طبراني(

)۵ (صحيفه سعدبن عباده .

سعدبن عباده په خپله له رسول الله صلي عليه وسلم څخه حديثونه اوريدلي وو، اوداصحيفه يې تياره کړي وه

)٦ (صحيفه سمرة بن جندب .

سمرة بن جندب رضی الله تعالي عنه داصحيفه درسول الله صلي الله عليه وسلم په ژوند کښي تياره کړيوه اوبياد هغه دزوی سلمان رضي الله تعالي عنه په حصه کښي راغله (حفاظت حديث )

)۷ (صحيفه انس بن مالک .

درسول الله صلي الله عليه وسلم خاص خادم انس رضي الله تعالي عنه په خپله حديثونه اوريدلي ؤ ، بيا يې ليکلي ؤ اورسول الله صلي الله عليه وسلم ته يې اورولي ؤ اورسول الله صلي الله عليه وسلم دهغه تصديق کړئ ؤ.

)حاکم(

)۸ (صحيفه عبدالله بن عباس رضي الله تعالي عنهما.

دعبد الله بن عباس رضي الله تعالي عنهما سره دحديثوڅو کتابونه ؤ ،کله چي عبدالله رضي الله تعالي عنه وفات سو نو دهغه سره داوښ ديوه بوج برابرکتابونه ؤ.

)ابن سعد (

)۹ (صحيفه جابربن عبدالله . رضي الله تعالي عنهما

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما ترتيب کړه شوي صحيفه دحج داحکامو پراحاديثو باندي مشتمله ده.

)۱۰ (صحیفه صادقه .

له عبدالله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنهما سره دحدیثو ډیره لویه ذخیره وه چي ده به دهغي ذخیري په باره کښي فرمایل چي ،صادقه هغه کتاب دئ چي ما بې له کومي واسطي له رسو ل الله صلي الله علیه وسلم څخه اوریدلئ دي اوبیا مي لیکلئ دئ.

)۱۱ (صحیفه عمربن خطاب رضي الله تعالي عنهما .

په دغه صحیفه کښي دصدقي اودزکوة حکمونه لیکل سوي وو،امام مالک رحمه الله تعالي فرمایلي دي چي مادعمررضي الله عنه داکتاب په خپله لوستئ دئ.

موطا امام مالک.

)۱۲ (صحیفه عثمان رضي الله تعالي عنه .

په دغه صحیفه کښي دزکوة ټول حکمونه درج سوي وو

بخاري.

)۱۳ (صحیفه عبدالله ابن مسعودرضي الله تعالي عنهما.

دعبدالله ابن مسعود زوی عبدالرحمن رحمه الله تعالي به په قسم سره ویل چي داصحیفه زما پلار په خپل لاس لیکلي ده.

ائینه پرویزیت .

)۱۴ (مسندابي هریره.

ددغه مسند نسخي داصحابو په وخت کښي لیکلي شویدي چي یونسخه یې دامیرالمؤمنین عمر بن عبدالعزیز له پلارسره هم موجوده وه.

محترمولوستونکو په پنځمه برخه کښي به دامام بخاري اودده دکتاب حالات انشاء الله تعالي درته بیان سي، اوپه شپږمه برخه کښي به انشاءالله دبخاري شریف په شرحه شروع کوو

## د بخاري او د شر ح فضل الباري لړۍ (۵) برخه

بسمه تعالي

محترمو لوستونکو دهغي وعدي مطابق چي په څلورمه برخه کښي مي درسره کړي وه په دي برخه کښي دامام بخاري رحمه الله تعالي اودده دکتاب صحيح البخاري دحالاتو بيان درته کوم خو له مخه ترشروع په دغه بيان کښي يو مهم مطلب درته ذکرکوم.

هغه مطلب دادئ چي شيخ مولانامحمد زکريا ذکرکړيدي چي داحاديثوکتابونه پرپنځه قسمه مرتبوباندي ويشل سويدي ، اول قسم هغه کتابونه چي ددوی احاديث موږ په پټو سترګو منو اوصحيح يې بولواوکه څوک دهمدغوکتابو په يوه حديث کښي کوم تردد اوشک ښکاره کړي نوموږ له ده څخه ددليل مطالبه کوو ،دغه کتابونه عبارت دي له دغو کتابو څخه ، صحيح بخاري ، صحيح مسلم ، موطا امام مالک ،صحيح ابن حبان ،مسند ابوعوانه مستدرک حاکم ،وغيره.

البته دمستدرک د حاکم په باره کښي دااعتراض کيږي چي حافظ ذهبي دمستدرک پرډيرورواياتو باندي تنقيد کړئ دئ ،خوددغه اعتراض جواب دادئ چي مستدرک چي په دغه اعلي طبقه کښي داخل دئ نودا دخول يې دهغواحاديثو په اعتبار دئ کوم چي پرهغوی باندي ذهبي سکوت کړئ دئ ،اودهغو احاديثو په اعتبار کوم چي ذهبي په هغوی باندي تنقيد کړيدئ په دريمه طبقه کښي داخل دئ کومه چي وروسته به راسي ،ځکه چي حاکم په مستدرک کښي له صحيحواحاديثو سره سره پرځني ضعيفو احاديثو باندي هم دصحت حکم کړئ دئ.

اودوهم قسم هغه کتابونه دي چي ددوی داحاديثو په باره کښي موږ دانه سو ويلای چي داصحيح حديثونه دي البته داويلای سو چي دا احديثونه داحتجاج اوداستدلال قابل دي ځکه داحتجاج اوداستلال دپاره داضروري نه ده چي حديث به صحيح وي بلکي حسن حديث هم ددي صلاحيت لري چي دليل په ونيول سي ،دغه قسم کتابونه دادي:

ابوداودشريف ، نسائی شريف ترمذي شريف طحاوي شريف ،اومسنداحمد بن حنبل ،وغيره.

دريم قسم هغه کتابونه دي چي دهغوی داحاديثو په باب موږ دصحت يا دتغليط حکم علي الاطلاق نه کوو بلکي يکښي ګورو او په پلټنه سره يې داخبره معلومه ؤ چي فلان حديث يې په کومه درجه کښي دئ اوفلان يې په کومه درجه کښي دئ ،دغه کتابونه لکه مصنف دعبدالرزاق مصنف دابن ابي شيبه اوابن ماجه وغيره.

اوڅلورم قسم هغه کتابونه دي چي دهغوی داحاديثو په باب موږ په پټوسترګو داحکم کولای سو چي دغه حديثونه ټول ضعيف دي او صرف دوعظ کتا بونه دي ،لکه مسند فردوس دديلمي اولکه نوادرالاصول دحکيم ترمذي اولکه هغه حديثونه چي په اکثرو کتابو کښي دتفسيرراوړل سويدي.

اوپنځم قسم هغه حديثونه دي چي موضوعي حديثونه يې راجمع کړيدي ددي دپاره چي مسلمانان ورڅخه خبرسي لکه اللالي المصنوعة في الاحاديث الموضوعة اولکه موضوعات کبري دملاعلي قاري رحمه الله تعالي ، خوزما په فکردلته يوشپږم قسم هم سته چي هغه هغه کتابونه دي چي په دوی کښي ځني هغه حديثونه چي نورو علماؤ موضوعي ګڼلي وي په قوي دلائلوسره له موضوعيت څخه ايستلي سوي وي لکه التعقبات علي الموضوعات دامام سيوطي صاحب.

ترجمه اواوحوال دامام بخاري.

پوسه چي دامام بخاري دنسب شجره په دي ډول علماؤذکرکړي ده.

محمدبن اسماعيل بن ابراهيم بن مغيره بن بَرْدِزْ بن بَذذ به الجعفي البخاري دده مبارک پلاراسماعيل دالله جل جلاله له صالحو بندګانو څخه ؤاوله محدثينو علماؤڅخه شميرلئ سوئ دئ اوابن حبان په کتاب الثقات کښي دده ذکرکړئ دئ اوده له حماد بن زيد اوله امام مالک څخه داحاديثو روايت کړئ دئ له ده څخه بيادعراق علماؤ دحديثو روايت کړيدئ اوله عبدالله ابن مبارک سره يې په مکه مکرمه کښي مصافحه کړيده اوعبدالله ابن مبارک زموږ دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله تعالي له شاګردانو څخه ؤ

حافظ ذهبي فرمايلي دي چي د بخاري پلار له تقوي داروعلماؤڅخه ؤ

پوسه چي دده مبارک دپلار پرتقوي باندي يولوی دليل داؤ چي دوفات په وخت کښي يې ډيرمال پريښودئ ،اوداپې وويل چي زما په دغه ټول مال کښي يوه روپي هم حرامه يا شبه ناکه نسته

اوداسماعيل نيکه مغيره په اصل کښي اتش پرست ؤبيا دبخارَي دحاکم يمان بن اخنس جعفي پرلاس باندي په اسلام سره مشرف سو اويمان دنسب په اعتبار عرب ؤ اوپه عربو کښي دجعفي قبيلي ؤ ،او جعفي بن سعدالعشيره دمذحج دقبيلي يوښاخ ؤ په همدغه سبب ومغيره ته اوامام بخاري ته جعفي ويل کيږي.

ولادت اووفات دامام بخاري.

پوسه چي په راجح قول دده مبارک ولادت په (۱۳)دشوال په سنه (۱۹۴) هجري کښي دجمعي له لمانځه څخه وروسته پيداسوئ دئ اووفات دده مبارک دهفتي په شپه کومه چي دعيدالفطرشپه وه په سنه (۲۵٦)هجري کښی سوئ دئ ،اودکوچني ا خترپه ورځ دماشپين له لمانخه څخه وروسته په خرتنګ کښي کوم چي دسمرقندله مضافاتوڅخه دئ دفن کړ سو،

ټول عمردده مبارکديارلس ورځي کم دوشپيته کاله ؤ ځني علماؤ دده مبارک دولادت اودفات اودعمرذکر دابجدپه حساب په دي ډول کړئ دئ.

كان البخاري حافظاً ومحدثاً

ــــ

جمع الصحيح مكمل التحرير

ميلاده صدق (۱۹۴)ومدة عمره

فيهاحميد(٦٢)وانقضي في نور)٢٥٦ (

ـــــــــــــــــ

امام بخاري رحمه الله تعالي لا بيخي وړوکي ؤ چي دده پلار له دنيا څخه انتقال وکړنوپه دي وجه دده دپالني اودتربيې ذمه واري دده د مبارکي مور پر غاړه باندي سوه او دده په صغيرتوب کښي داواقعه هم ورپيښه سوه چي دسترگوديد اوبينايي يې ختمه سوه چي په دي وجه دده مورمبارکه ډيره زهيره اوپريشانه سوه اودده دپاره يې په ډيرعجز اواحتياج سره دعاوکړه څرنگه چي دده مور هم ډيره عابده اونيک عمله ښځه وه نوالله پاک ددي دعاقبوله کړه په دي ډول چي د دي له دعاڅخه وروسته دي يوخوب وليدئ په خوب کښي له حضرت ابراهيم عليه السلام سره مخامخ سوه ،حضرت ابراهيم عليه السلام پردي باندي دازيري وکړچي ستادعا الله پاک قبوله کړه اوستا ددعا په برکت يې ستادزوی‌سترگي بينا کړي نوکله چي دا له خوب څخه رابيداره سوه دخپل ځوی‌محمد بن اسماعيل بخاري سترگي يې جوړي .اوروغي وي.

دامام بخاري تصنيفونه .

پوسه چي دامام بخاري رحمه الله تعالي مشهورتصنيفونه په دي ډول دي.

)۱ (قضايا الصحابة والتابعين.

)۲ (التاريخ الكبير .(۳) الادب المفرد(۴) جزءالقراءة خلف الامام .(٦) تاريخ الاوسط .(۸) تاريخ صغير.(۹) خلق افعال العباد.(۱۰) كتاب الضعفاء.(۱۱) برالوالدين(۱۲) جامع كبير .(۱۳) مسندكبير.(۱۴) تفسيركبير.(۱۵) كتاب الاشربة (١٦) كتاب الهبة (۱۷) اسامي الصحابة (۱۸) كتاب الوحدان (۱۹) كتاب المبسوط (۲۰) كتاب العلل (۲۱)كتاب الكُني (۲۲)كتاب الفوائد .

بخاري شريف.

پوسه چي دامام بخاري رحمه الله تعالي دتصنيفوله جملي څخه دغه مقدس كتاب ترټولو مشهور مقبول اودعظمت والا كتاب دئ چي اصح الكتب بعدكتاب الله وصف اونعت يې گڼلئ دئ ددغه مبارک كتاب مفصل نوم دامام نووي په قول دادئ. الجامع المسند الصحيح من امور رسول الله صلي الله عليه وسلم وسننه وايامه .

اودابن حجردوينا مطابق .الجامع الصحيح المسند من حديث رسول الله صلي الله عليه وسلم وسننه وايامه.

جامع په دي سبب ورته ويل کيږي چي په ده کښي امورثمانيه ټول موحود دي کوم چي مخکي ذکرسول ، اومسند په دي اعتبار ورته ويل کيږي چي امام بخاري په دغه کتاب کښي داسناد له متصل والي سره سره مرفوع حديثونه ذکرکړيدي ،اوکوم اثاروغيره چي په دغه کتاب کښي ذکرسويدي نوهغه په ضمني اوپه تبعيي توګه دي اوصحيح په دي وجه ودغه کتاب ته ويل کيږي چي امام بخاري حمه الله تعالي په دغه کتاب کښي داحاديثودصحت التزام کړئ دئ.

اومختصرپه دي اعتبار ورته ويل کيږي چي ټول صحيح حديثونه په دغه مبارک کتاب کښي امام بخاري نه دي راوړي امام په خپله فرمايلي دي ،چي مانه دي داخل کړي په دغه کتاب کښي مګرصحيح حديثونه اوځني صحيح حديثونه مي په دغه کتاب کښي نه دي راوړي ددي دپاره چي کتاب درازنسي.

له امورو

او له لفظ دحديث څخه مراداقوال درسول عليه السلام دي اوله سنن څخه مراد اقوال اوتقريرات دده مبارک دي .

اوله ايام څخه مرادغزاګاني دده مبارک اودارنګه هغه ټول واقعات مراد دي چي دنبي عليه السلام په زمانه کښی پيښ سويدي.

سبب دتأليف دصحيح بخاري.

پوسه چي علماء کرامو دصحيح بخاري دتأليف دوه سببونه بيان کړيدي.

)۱ (سبب يې دادئ چي ابراهيم بن معقل نسفي فرمايلي دي چي امام بخاري رحمة الله تعالي په خپله ويلي دي چي زه دخپل استاذ اسحاق بن راهويه په مجلس کښي ناست وم چي زموږ په ملګرو کښي يوه نفروويل چي کاشکي تاسي درسول عليه السلام په صحيح سنت يعني احاديثوکښي يومخنصر کتاب جمعه کړيواى دهمدغه ملګري له دغي خبري څخه زما په زړه کښي انديښنه اوداعيه دبخاري دکتاب دجوړولو پيداسوه . انظرتاريخ بغداد ج۲ ص۸ ،اوتهذيب الکمل ج۲۴ص۴۴۲ ،او سيراعلام النبلاء جلد۱۲ص۴۰۱ ،اوطبقات السبکي ج۲ص۷ ،او هدي الساري ص۷ وتهذيب الاسماء والغات ج۱ ص۷۴ .

)۲ (سبب يې دا ووچي محمد بن سليمان بن فارس رحمه الله تعالي فرمايلي دي چي ماله امام بخاري څخه اوريدلي دي چي ده به فرمايل چي مارسول عليه السلام په خوب وليدئ چي زه دده مبارک په مخ کي ولاړوم زما په لاس کښي يولاسي پيک ياپنکه وه له ده مبارک څخه مي مچان شړل ځنومعبرينودخوب تعبير په دي ډول راکړ چي ته

به دروغ له رسول علیه السلام څخه دفع کوي ،یعني په دروغوچي کوم حدیثونه ودته منسوب سویدي ،نوته به دهغوی دفع وکړي نوپه دي وجه زما په زړه کښي دنبي علیه السلام دصحیح احادیثودجمعه کولوشوق پیداسو.

د بخاري شريف ابتداء اوانتهاء.

پوسه چي ټول کتاب امام بخاري رحمه الله تعالي په شپاړس کاله کښي تکمیل کړیدئ ،اودبعضي مشائخو په قول ابتداء دتصنیف یې په (۲۱۷) هـــ کښي کړیده اواختتام یې په (۲۳۲) هـــ کښي کړئ دئ ،اوتراجم دصحیح بخاري په رياض الجنة کښي چي داسلام دپیغمبر دمبارک ممبر اودمطهري روضي مابین دئ په دي ډول امام بخاري لیکلي دي چي دهرترجمة الباب دپاره بې دوه رکعته نفل وکړل .مقدمة اللامع الدراري ص) ۱۲۴(

عمر بن محمد بن بجیر البجیري ویلي ډي چي امام بخاري فرمایلي دي چي دغه کتاب ما په مسجدحرام کښي لیکلئ دئ اودهر حدیث ترلیکني دمخه به مي استخاره کوله اودوه رکعته لمونځ به مي کاوه اوچي پرکوم حدیث باندي به مي دصحت یقین رانغلئ نوهغه به مي په بخاري کښي نه لیکئ .هدي الساري ص (۴۸۹) یعني ابتداءدتصنیف یې په مسجدحرام کښي کړیده ،اوځني علما ؤ لکه فربري فرمایلي دي چي امام بخاري فرمایلي ددي چي دهرحدیث دپاره چي مابه په بخاري کښي لیکئ نومابه غسل کاوه اودوه رکعته لمونځ به مي کاوه.

مقام اومرتبه دصحیح بخاري.

پوسه چي علماؤپردي خبره باندي اتفاق کړئ دئ چي ترټولو کتابو دحدیثو اصح کتابونه بخاري اومسلم دي اوبیاجمهور دعلماؤ پردي خبره باندي متفق دي چي په دوې دووکښي بیا اصح کتاب بخاري دئ.

د بخاري د احاديثو شمیر.

دبخاري د احدیثو شمیر په دي ډول دئ:

روایات مرفوعة موصولة مع مکررات ۷۳۹۷

روایات معلقة مخرجة المتون في الصحیح ۱۳۴۱

متابعات) ۲۳(

میزان ۹۰۸۲

روایات مرفوعة موصولة بدون تکرار ۲٦۰۲

روایات معلقة غیرمخرجة المتون في الصحیح ۱۵۹

میزان کل احادیث بدون تکرار ۲۷٦۱

محترمو مطالعه کونکو مقدماتي بيانونه خو بيخي ډير دي خاص بيا دامام بخارى اودده دکتاب په اړه چي په جريان کښي دسلسلې دشرحي دبخاري شريف به بيل بيل ځايونه درته راسي خودلته مقدماتي بيانوته په همدغه ځاى خاتمه ورکوم او راروانى برخي به دبخاري شريف دکتاب په شرحه کښي وي

## د بخاري شريف او د شرح فضل الباري لړۍ(٦) برخه اول باب(باب الوحي)

محترمووروڼو په دي برخه کښي دبسم الله شريف اودبخاري دکتاب داول باب دترجمة الباب دالفاظوتفسيراوعلمي تحقيق درته کوم ،دلفظي ترجمې ترپيل دمخه داخبردرته کوم چي امام بخاري دخپل کتاب ابتداء دوحي په باب سره څکه کړيده چي وحي مبدء اوسرچينه دټول شريعت اودقران کريم او د نبوي احاديثو ده

بسم الله الرحمن الرحيم ، باب كيف كان بدء الوحي .الخ ــ

لفظي ترجمه:

( بِسْمِ ) خاص په نامه ، يا خاص په نامه سره ( اَللهِ ) دخداي پاک ( الرَحْمَنِ ) ډيرمهربانه په دنياکښي پرهرچابانديي، که کافروي که مسلمان وي

( الرَّحِيْمِ ) ډيرمهربانه په اخرت کښي خاص پرمومنانو، شروع کوم ياتصنيف کوم � يعني زه چي په دغه تصنيف کښي شروع کوم اوياداتصنيف چي زه کوم نوداپه داسي حال کښی کوم چي خاص په برکت د نامه سره دهغه الله چي رحمن اورحيم دئ مستعين اوکومک غوښتونکئ يم.

تنبيه : پوسه چي په عامو کتابوکښي کوم چي په پښتوسره ترجمه سويدي دبسم الله ترجمه په دي ډول سويې ده ، شروع کوم په نامه دالله پاک چي رحمن اورحيم دئ.

مگردغه ترجمه مناسبه نه ده اصلي ترجمه هغه ده کومه چي مادرته وکړه ، ددي يوعلت دادئ چي دشروع کوم لفظ دبسم الله دمتعلق معني ده اومتعلق دبسم الله په اتفاق سره لپاره دافادي داختصاص لکه چي تفصيل بي وروسته راسي له بسم الله څخه وروسته مقدرکړکيږي.

علمي تحقيقات اومباحث:

پوسه چي دبسم الله په ارتباط په ډيرو کتابو کښي بيان سويدئ اوموږهم په تفسيرفضل الرحيم کښي دبسم الله ډيرمفصل بيان کړيدئ خودتيمن اودتبرک په خاطريوڅو مهمي خبري دلته ذکر کوم کومي چي په مذکور تفسيرکښي هم مانه دي بيان کړي.

اوله خبره داده چي متعلق دبسم الله الرحمن الرحيم په اتفاق دعلماوومقدراومؤخردئ اوداپه سبب ددووشيانو.

اول شي دادئ چي دجاهليت په زمانه کښي اودارنگه داسلام په ابتدائي دورکښي ترهغه پوري چي دعربومشرکانووجودرلودئ چي به کله مشرکانوپه يو کارکښي شروع کوله نودبتانوپه نومو سره بي تبرک اوتيمن حاصلوئ اوداسي بي مثلاً ويل ،بسم اللات والعزي نشرع،

يعني خاص په نامه دلات اودعزي بت موږشروع کوو يعني په فلان کار کښي نودوی به دمذکوره جاراومجرور متعلق کوم چي نشرع دئ وروسته ذکرکاوه نوځرنگه چي بسم الله شريف ددوی ددغه ذکرسوي قول په مقابل کښي ده نو په دي وجه بايد دبسم الله متعلق له بسم الله څخه وروسته وي.

دوهم شي دادئ چي په نحوه کښي داقانون دئ چي دهرشي چي حق تقديم او دمخه کول وي اوته يې وروسته کړي اويايې حق وروسته کول وي اوته يې له مخه کړي نودافايده کونکي دحصراواختصاص دئ نوځرنگه چي دلته حصراواختصاص مقصوددئ نو بايد متعلق دبسم الله کوم چي دلته ابتدء يااصنف دئ چي په پښتو معني يې شروع کوم يا تصنيف کوم د ئ مؤخر او وروسته ورسره لحاظ کړسي ددي دپاره چي حصر اواختصاص فايده کړي په اسانه ډول بايدداسي درته ووايم چي که مثلاً دشروع کوم لفظ دبسم الله په سرکښي په ترجمه کښي دبسم الله وويل سي نومعني په دي ډول کيږي چي شروع کوم په نام دالله پاک اوداسي نه ويل کيږي چي خاص په نامه دالله پاک ، اوکه دشروع کوم لفظ دبسم الله دترجمي په اخير کښي راوړل سي نومعني په دي ډول کيږي خاص په نامه دالله چي رحمن اورحيم دئ شروع کوم.

دوهمه خبرداده چي دغه حصراوخاصوالئ چي دبسم الله دمتعلق له وروسته کولو څخه پيداسويدئ په دري قسمه دئ:

اول حصرقلب.

دوهم حصرافراد.

دريم حصرتعيين .

تفصيل ددي خبري دادئ چي په نسبت ودهريه کافرانو ته کوم چي دالله جل جلاله له وجودڅخه منکر دي اودټولوحوادثودپيدايښت نسبت ودهرته کوي حصرقلب راځي

ځکه چي دوی تبرک اوتيمن ددهراودزماني په نامه کښي حصرکاوه اوپه بسم الله کښي ددغه حصرقلب اورا اړول سويدي چي حصردحاصلولو دبرکت دخداي جل جلاله په نامه کښي راغلئ دئ ، اوپه نسبت و مشرکانوته په بسم الله کښي حصرافرادراغلئ دئ ځکه چي مشرکانو دتبرک حاصلول هم په نومودبتانوسره کاوه اوهم په نامه دالله جل جلاله سره ، په بسم الله کښي دغه اشتراک رد کړسوي دئ اوتبرک حاصول دالله جل جلاله په مبارکو نومو پوري خاص کړسويدئ ، اودارنگه په بسم الله کښي حصرتعيين راغلئ دئ خوپه نسبت ولاادريه کافرانوته کوم چي يوه

کافره ډله وه اوپه تیروقرنوکښي یې وجوددرلودئ اواوس دغه ډله وجودنلري او مذهب اومسلک ددوی په هرشي کښي شک اوترددوو دمثال په ډول چي ورته وبه دي ویل چي دقیامت ورځ حقه ده اوکه څنګه نوبې درته وویل چي موږ نه یوخبر چي ایا دغه ورځ سته اوکه نسته ، دارنګه چي به تاورته وویل چي په یوکار کښي چي یوسړي شروع کوي نوده کارپه سر کښي به دبرکت حاصلولو دپاره دخداي نوم ذکر کوي اوکه دبت یاددهرنوم ؟ نودوی به درته وویل چي موږ نه یو خبر ، نوپه بسم الله کښي چي حصر دتبرک حاصلولو دالله پاک په نامه کښي ثابت سو نوپه دي وجه دمتبرک به تعیین وکړسو نو ځکه په بسم الله کښي حصرتعیین راغلئ دئ.

دریمه خبره داده چي دالله دلفظ معني خو دسهولت په وجه په عام ډول داسي کیږي چي ، اَلله ، یعني خداي پاک ، خواصلي علمي معني یې په دي ډول ده چي ، الله ،یعني هغه ذات چي په خارج کښي موجوددئ او واجب الوجوددئ ، یعني وجودیې ضروردئ اوپه هیڅ وخت کښي نیستي سوئ نه دئ اونه نیستي کیږي ،او موصوف دئ په ټولوکاملوصفتوسره اوپاک دئ له ټولو نقصاناتوڅخه.

اودرحمن اودرحیم په معني کښي مختلف قولونه راغلي دي خو مشهوره اوبهتره معني یې هغه ده کومه چي مادرته ذکرکړله.

څلورمه خبر داده چي دبسم الله الرحمن الرحیم په شان کښي داسي حدیث راغلئ دئ چي

)کل امر ذي بال لایبدء فیه بذکرالله ،وببسم الله الرحمن الرحیم فهواقطع.

رواه الحافظ عبدالقادر في اربعینه.

یعني هرکارچي خاونددشرف وي چي شروع ونه کړه سي په ده کښي په داسي حال کښي چي شروع کونکئ ددغه کار مستعین وي په ذکرالله پاک سره اوپه بسم الله الرحمن الرحیم سره نودغه کار ډیر مقطو ع الخیره اوډیرمقطوع البرکته دئ دارنګه دحمدویلوپه باره کښي دغه مبارک حدیث راغلئ دئ.

)کل کلام لایبدء فیه بحمدلله فهواجزم(

رواه ابوداودوالنسائې.

یعني هر کلام چي شروع ونه کړه سي په ده کښي په حمد دخداي سره نوهغه ډیر مقطوع البرکته یعني ډیر بې برکته دئ نو په مقتضی دحدیث دحمددلته یوسوا ل پیداکیږي په دي ډول چې امام بخاري په خپل کتاب کښی له بسم الله څخه وروسته حمد ندی راوړی اومخالفت دحدېث دحمدیې کړي دی ددې سوال دبخاری شارحېنو خوراډیر جوابونه کړي دي چي ذکرکول یې ډیرفائده مندنه ښکاره کیږي خودهغوی له جملي څخه یومهم جواب درته ذکرکوم کوم چي شیخ انورپه فیض الباري کښي ذکرکړئ دئ هغه دادئ چي حدیث دحمداودبسم الله په حقیقت کښي یوحدیث دئ خوصرف په روایاتوکښي دالفاظوبدلون راغلئ دئ مقصودله دواړو حدیثوڅخه دامرذي

بال په سرکښي دالله جل جلاله نوم ذکرکول اودالله جل جلاله دکاملوصفتو اظهارکول دي نودبسم الله په ویلو سره دغه مقصودحاصلیږي اودحمدوویلوته په مستقل ډول سره ضرورت نه پاته کیږي

لفظي ترجمه :

باب) باب ددي ، یعني دغه باب په بیان کښي ددي دئ ( کیف ) چي څرنګه ( کَان ) وو ( بدء ) شروع کیدل ،اغازاوپیل کیدل (الوَحْي ) دوحي( الي ) و ( رسول ) رسول ته ( الله ) دخداي پاک ( صلي ) رحمت دي نازل کړي ( الله ) خداي پاک ( علیه) پرده باندي ( و ) او (سلم )سالم دي لري خداي پاک ، یعني رسول مطلب داچي دین اوامت دده دي خداي پاک سالم لري اویاپي داسي معني وکړه چي سلامتیا دي نازله کړي الله پاک یعني پرده باندي مراداداچي پردین اوپرامت دده باندي دي خداي پاک سلامتیا نازله کړي.

توضیح.

په دغه مذکوره عبارت کښي امام بخاري رحمه الله داسي فرمایلي دي چي دا باب د دي دئ چي څرنګه وو، پرڅه کیفیت باندي ؤ شروع کیدل دوحي دالله جل جلاله له طرف څخه ورسول صلي الله علیه وسلم ته.

(وَ) او(قَوْلِ ) ددي قول ، یعني اودارنګه داباب ددي قول (اللهِ) دالله دي (عزّ)چي غالب دئ دَيْ ، یعني الله پاک پرهرڅه باندي (و) او (جَل ) چي لوی‌دئ دَيْ، یعني الله پاک

(انا)بیشکه موږ (اَوْحَيْ ) وحي کړیده (نَا) موږ (اِلَيْ) و (کَ) تاته (کَ) په مثل (مَا) ددي (اَوْحَي)چي وحي کړیوه)(ْنَا) موږ (اِلَي) و ( نُوْحٍ ) نوح ته (وَ) او (النبِییْنَ)وهغونبیانوته (مِنْ) چي له ،یعني چي وو له ( بَعْدِ) وروسته څخه (هِ) دده، یعني دنوح . / النساء/١٦٢

توضیح:

یعني لکه څرنګه چي داباب دکیفیت دپیل کیدودوحي دئ ورسول علیه السلام ته دارنګه دغه باب دذکرکولو ددي قول دخداي پاک هم دئ چي دسورت النساء (١٦٢) مبارک ایت دئ ، پوسه چي مذکورایت دلته ټول مذکور ندئ دټول ایت ترجمه داده:

بیشکه موږ یعني اي رسوله ، وحي کړیده موږ وتاته لکه څرنګه چي وحي کړیوه موږ ونوح ،علیه السلام، ته اووهغوټولونبیانوته کوم چي له نوح څخه وروسته ؤ او لکه څرنګه چي وحي کړیوه موږ وابراهیم ته اوواسماعیل ته اوواسحق ته اوویعقوب ته اواولاد دیعقوب ته اووعیسي ته اووایوب ته اوویونس ته اووهارون ته اووسلیمان ته (علیهم السلام)اولکه څرنګه چي ورکړیوموږوداؤد ته زبور.

علمي بحث اوتفصيل:

پوسه چي د(باب) لفظ په اصل کښي ( بَوَبٌ) وو په زوردباءاودواوسره بياواو په الف بدل سويدئ په وجه ددغه صرفي قانون چي هرواوچي حرکت لري اوماقبل دده مفتوح وي نوهغه واو به په الف بدليږي دغه لفظ غالباً دابواب په لفظ سره جمعه کيږي ،اوکله يې

جمع اَبْوِبَة هم راځي اوله دغي مادي څخه دبابة اودَباباتٌ لفظونه هم راغلي دي کوم چي ومخ اوومخانوته ويل کيږي اودبابة لفظ په معني دخصلت هم راغلئ دئ ، همدارنگه پوسه چي دلته دري لفظونه دي ، اول دباب لفظ ، دوهم دکتاب لفظ ، دريم دفصل لفظ، دباب لفظ په اصلي لغت کښي ودروازي ته ويل کيږي بيادغه لفظ کله کله دنوع په معني هم راځي اودمصنفينو په اصطلاح کښي دباب لفظ دهغومسئلونوم دئ کوم چي په نوع کښي سره گډي وي لکه مثلاً مسائلي داوداسه اودکتاب لفظ دهغوټولو مسئلو نوم دئ کوم چي په کتاب کښي له ابتداء څخه بياترپايه پور راغلي وي کومي چي په خپل منځ کښي په جنس کښي سره مختلفي دي ، اودفصل لفظ دهغومسئلونوم دئ چي په صنف کښي سره گډي وي لکه دمثال په ډول داوداسه په باب کښي دمسح مربوطي مسئلي ، دلته دباب لفظ په اصطلاحي معني سره مراددئ، همدارنگه پوسه چي دلته دباب په لفظ کښي دري احتمالونه دي اول داچي موقوف يعني په سکون سره ددوهمي باء وويل سي پردغه تقديرابتداء دکلام د(کيف) له لفظ څخه کيږي ، دوهم احتمال دادي چي دباب لفظ مرفوع وويل کړسي ، په دي کښي بيا دوه احتماله دي اول احتمال دادئ چي مرفوع سي سره له تنوينه دوهم احتمال دادئ چي مرفوع سي بي له تنوينه او مابعدجملي ته مضاف سي ، پراول احتمال باندي دباب لفظ مبدل منه ده او(کيف کان الي اخيره)ورڅخه بدل دئ او دغه مبدل منه سر ه له بدله خبردئ دمحذوفي مبتداء لپاره چي لفظ دهذا دئ او يا دبابٌ لفظ موصوف دئ اود(مضمونه) لفظ له باب څخه وروسته مقدر دئ اومبتداء دئ او(کيف کان ...الخ) يې خبردئ مبتداء سره له خبري صفت دئ دبابٌ مجموع بيا خبردئ دهذامقدر، اوپردوهم احتمال باندي دباب لفظ مضاف دئ او(کيف کان .. الخ ) يې مضاف اليه دي اومضاف سره له مضاف اليه خبردهذامقدردئ.

)کيف(

پوسه چي لفظ دکيف داسي اسم دئ چي په اصل کښي متضمن دئ معني لره دهمزه داستفهام ځکه چي دکيف په لفظ سره سوال کيږي له حال څخه ديوشي اواستعمال يې په کلام دعربوکښي پردووطريقوباندي راغلئ دئ، اوله طريقه داده چي متضمن وي معني دشرط لره لکه په دي قول کښي، کيف تصنع اصنع ، يعني څرنگه چي ته کوي نوزه هم هغه ډول کوم ، اودوهمه طريقه داده چي متضمن سي معني لره دهمزه داستفهام پردغه تقديرباندي بيا دوه احتماله راځي ، اول احتمال دادئ چي دغه استفهامي معني په حقيقي ډول ورڅخه مراده وي لکه په دي قول

کښي چي ، کيف انت، يعني څنګه يې ته ، دوهم، احتمال دادئ چي مرادله دغه استفهام څخه انکار اوتعجب وي لکه په دي قول کښي ، کيف تکذب وانت عالم يعني څرنګه دروغ وايې ته حال دا چي ته عالِم هم يې.

(کان) پوسه چي دغه لفظ په دري ډوله مستعمل سويدئ اول فعل ناقص چي پردغه تقديريې په پښتوکښي معني په ،ؤ، سره کيږي دوهم فعل تام په معني دوجداوثبت دريم فعل ناقص په معني دصارَ يعني ګرځيدلئ دئ، بناپراول استعمال چي هغه د کان دلفظ حقيقي استعمال دئ دغه لفظ دلالت کوي پرثبوت باندي دخبري خپلي واسم خپل ته په ماضي زمانه کښي بي له اشاري ودي ته چي دغه خبرپه حالي زمانه کښي هم ثبوت لري اوکه يې نلري دلته په همدغه حقيقي استعمال باندي بنادئ.

)بَدء (

پوسه چي په بخاري شريف کښي اختلاف دنسخو بيخي ډيرراځي چي لفظ دباب اولفظ دبدء يې اولني دوه مثالونه دي ځکه چي په ځينو نسخوکښي دبخاري شريف لفظ دباب نسته له بسم الله څخه وروسته اول لفظ دکيف کان راغلئ دئ ،اوپه اکثرونسخوکښي بيا لفظ دباب موجوددئ ، اودارنګه په ځينو نسخوکښي دبخاري شريف دبدء لفظ راغلئ دئ کوم چي په معني دشروع دئ لکه دلته اوپه ځينونسخو کښي دابتداء لفظ راغلئ دئ چي هغه هم په معني دشروع دئ اوپه ځينونسخوکښي دُبدوّ لفظ راغلئ دئ کوم چي په معني دظهوردئ يعني ښکاره کيدل.

)الوحي(

پوسه چي دوحي لفظ په اصل اوپه لغت کښي ډيري معني وي لري چي تفصيل يې په دي شرحه دئ.

١ ــ الاعلام في خفاء ،يعني پوه کول ديوچا په خفيه اوپه پټه کښيٍ

٢ ـــ الاشارة السريعة ، يعني اشاره تيزه يعني ويوشي ته په تيزي اوپه سرعت سره اشاره کول.

٣ـــ کتابت، يعني ليکنه کول

۴ ـــ رسالت،يعني پيغام.۵ــ الهام . ٦ــ کلام خفي.

اوپه شريعت کښي علماوو دوحي شرعي معني په مختلفوتعبيروسره بيان کړيده. ١ـــ الاعلام بالشرائع ،يعني پوه کول دالله جل جلاله نبي اورسول خپل لره په شرعي احکامو٢ـــ کلام الله المنزل علي نبي من انبيائه ، يعني وحي کلام د الله جل جلاله دئ چي نازل کړسوئ وي پريوه نبي باندي له انبياوودده . ٣ـــ اعلا م الله نبيامن انبيائه بشئ اما بکتاب اوبرسالة ملک اومنام اوالهام ، يعنی پوه کول دالله جل جلاله نبي خپله لره په يوشي يا په واسطه دکتا ب اويا په واسطه دورليږلو دفرشتي اويا په واسطه دخوب اويايه واسطه دالهام .

دوحي تقسیم.

پوسه چي کومه وحي چي دالله جل جلاله له طرفه وي هغه پردوه قسمه ده اول قسم وحي دنبوت ده چي وحي شرعي هم ورته ويله کيږي ، دوهم قسم وحي دغيردنبوت دئ کوم چي وحي لغوي هم ورته ويله کيږي بيا دغه دوهم قسم پردري قسمه دئ، اول وحي فطري دئ دوهم وحي ايجادي دئ ،اودريم قسم وحي عرفاني دئ ، وحي فطري وحيوانانوته هم له الهي لوري څخه ثابته ده لکه الله جل جلاله چي فرمايلي دي (واوحينا الي النحل .. الاية) يعني اووحي کړيده موږ ومچمچيودعسلوته ، اووحي ايجادي بيا ترذوي العقولوپوري خاص ده عام له دي که مومنان وي اوکه کافران وي، وحي ايجادي ودي ته ويله کيږي چي يوڅوک مثلاً ديوشي په جوړولوکښي ياپه بل عبارت ديوکارپه کولو کښي فکراوسوچ ته دوام ورکړي چي دغه شي به په څه طريقه سره جوړکړم يا ودغه کارته به څنګه نقشه برابره کړم نو اخيرالله پاک دده په ذهن کښي دهغه شي دجوړولو يا دهغه کار دکولو نقشه ورواچوي

دمثال په ډول اول وار چي په دنياکښي دموټراوتياري اختراع اوايجاد کوم چا کړيدئ نوهغه ددغودووشيانو دايجادولو په باره کښي تدبر اوتأمل کاوه چي په نتيجه کښي ددي اخرالله جل جلاله دموټر اودتياري دجوړولو نقشه په ذهن کښي ورواچوله ددغه قسم وحي اثبات ځينوعلماووپه دي قول دخداي پاک سره کړيدئ ( کلا نمدهؤلاء وهؤلاء من عطاء ربک وماکان عطاء ربک محظورا .،اووحي عرفاني وهغه الهام ته ويل کيږي کوم چي دالله جل جلاله ل طرفه واولياء کرامو ته کيږي دغه قسم وحي په امثالوسره ددغه قول دخداي پاک ثابته ده چي (واوحينااالي ام موسي ... الاية. (

دوحي شرعي قسمونه.

پوسه چي په بيان کښي داقسامو دوحي شرعي علماوو مختلف تعبيرونه کړيدي چي تفصيل يې په دي شرحه دئ.

امام حليمي ذکر کړيدي چي دشرعي وحي څلويښت قسمونه دي کوم چي څلويښتم قسم يې خوب ليدل دنبي دي دده ددغه قول مأخذ هغه مبارک حديث دئ چي امام بخاري يې له حضرت ابوهريره رضي الله تعالي عنه څخه دبخاري په کتاب التعبير کښي چي رسو ل الله صلي الله عليه وسلم ( روياالمومن جز من ستة واربعين جزءًا من النبوة)

يعني خوب ليدل د مومن يو جزده له شپږڅلويښتواجزاوو څخه دنبوت.

دوهم : امام سهيلي په الروض الانف کښي ټول قسمونه دوحي اوه بللي دي او داداکثرو شارحينو نظردئ چي بيان ددغو اوو قسموپه دي ډول دئ ، اول خوب ليدل دنبي ، پردي مسئله باندي اتفاق د ئ چي خوب ليدل دنبي شرعي وحي ده حضرت ابراهيم عليه السلام دخوب دليدلو په وجه د خپل ځوي پر ذبحه کولوباندي اقدام وکړ همداسبب

دئ چي علماوو فرمايلي دي چي دنبي په حيات کښي که نبي ويده وای نو داروانه ووچي يوځوک دَي له خوب څخه راويښ کړي ځکه چي دده دخوب په وخت کښي ددي احتمال وو چي په خوب کښي به وده ته وحي کړه کيږي.

دوهم قسم وحي القاء في القلب ده يعني که به چيري دنبي پرزړه باندي کوم شي واردسو نوهغه به شرعي وحي وه اوکه چيري دنبي علي السلام دامتي پرزړه باندي کوم چي ولي وي

يوشي وارد سي نووهغه ته کشف ويل کيږي ددغه قسم وحي اودکشف فرق دادئ چي کشف دولیۍ پرزړه باند ي وارديږي اودصواب اودخطاء

ددواړو احتمال لري او وحي دنبي پرزړه باندي وارديږي اواحتمال دخطانلري.

دريم قسم وحي من وراءالحجاب ده لکه الله پاک چي له حضرت موسي عليه السلا م سره دطور په غره کښي من وراءالحجاب خبري وکړي ، اويا لکه چي دمعراج په شپه يې له رسول عليه السلام سره خبري وکړ ي اويالکه چي په خوب کښي الله پاک له نبي عليه االسلام سره خبري کړيدي لکه چي دترمذی شريف په يوه حديث کښي راغلي دي .

)اني قمتُ من الليل فتوضأت وصليتُ ماقُدرلي فنعسُت في صلاتي حتي استثقلتُ فأذاانا بربي تبارک وتعالي في احسن صورة فقال: يامحمد، قلتُ لبيک رب ، قال فيم يختصم الملأالأعلي؟..

څلوم قسم دوحي داده چي ملک اوفرشته په خپل اصلي شکل کښي ونبي ته راسي او الهي کلام ورته ووايې.

پنځم قسم دادئ چي ملک به دانسان په شکل کښي ونبي ته راغلئ اوالهي کلام بي ورتهووايه.

شپږم قسم هغه وحي وه چي دصلصلة الجرس په مثل به ونبي عليه السلام ته وسوه کومه چي تفصيل بي په وروسته کښي انشاءالله راسي.

اوم وحي په واسطه داسرافيل عليه السلام ده.

دريم قول دادئ چي وحي پرڅلورقسمه ده اول قسم وحي من وراء الحجاب ده.

اودوهم قسم وحي د تلقي بالقلب ده .دريم قسم وحي دخوب ده. څلورم قسم وحي په واسطه دفرشتي ده دهري فرشتي په واسطه چي وي اوعام له دي څخه که دغه فرشته په خپل اصلي شکل کښي ونبي ته راغلي وي اوکه دانسان په شکل کښي.

څلورم : علامه آلوسي فرمايلي دي چي وحي پردري قسمه ده ، اول قسم وحي داده چي الله پاک له نبي سره بي له کومي واسطي څخه خبري وکړي، اودوهم قسم يې دادئ چي الله پاک له نبي سره دملکي اودفرشتي په واسطه سره

خبري وکړي ، دريم قسم يې دادئ چي دتلقي بالقلب له لاري وحي ورته وکړه سي اوتلقي بالقلب عام دئ که په خوب کښي وي که په بيداري کښي.

پنځم دحنفي فقهي علماووفرمائلي دي چي وحي پردوه قسمه ده اول ظاهري اودوهم باطني ، باطني وحي ودي ته ويله کيږي چي نبي عليه السلام په يوحکم کښي مثلاً اجتهاد کړيوي بيادالله جل جلاله له طرفه وده ته پرهغه اجتهادباندي قرار ورکړسويوي ، اووحي ظاهري پردري قسمه ده ، اول قسم يې دادئ چي ونبي ته فرشتي بالمشافهه بيان کړيوي ، اودوهم قسم يې دادئ چي له شفاهي بيان څخه پرته ديوقسم واضح اشاري له لاري څخه يې و نبي ته خبره رسولي وي چي په ځيني احاديثو کښي له دي قسم څخه په نفث في الروع تعبيرسويدئ ، دريم قسم وحی دالهام ده وحي دالهام ودي ته ويله کيږي چي دنبي په زړه کښي به دفرشتي له اشاري اوله شفاهي بيان څخه پرته له الهي لوري څخه کومه خبره ولويدله.

فايده:

پوسه چي الهام دنبي په اتفاق شرعي حجت دئ ليکن په الهام کښي دولي اختلاف دئ په دي ډول چي دبعضي صوفيه وو په نزد الهام دولي په شرعي احکامو کښي حجت ګرځيدلای سي هم دصاحب دالهام په حق کښي اوهم دنورو په حق کښي ، اوامام رازي اوابن صباغ اوامام سهروردي فرمايلي دي چي الهام دولي دده دځان په باره کښي حجت دئ مګر دبل چا دپاره دده الهام دليل اوحجت نسي ګرځيدلای البته تنها پرده باندي عمل کول په مقتضي دالهام خپل واجب دئ ، صاحب دميزان دغه قول دجمهوروعلماوو قول بللئ دئ ، اوځنو علماوو فرمايلي دي چي الهام دولي نه دده دپاره حجت دئ اونه دبل چا دپاره ځکه چي له نبي څخه پرته دبل چا په حق کښي داسی قطعي دليل نسته چي کوم شي چي دده په زړه کښي ولويږي نوداالله جل جلاله له طرف څخه دئ اودنفس اودشيطان په هغه کښي کومه برخه نسته.

التقرير والتحبير شرح التحرير لابن الحاج الحلبي ج٣ ص٢٩٥ او٢٩٦ .

)الي رسول(

پوسه چي درسول لفظ دفعول وزن دئ کوم چي په معني دمفعول دئ په لغت کښي وليږل کړه سوي ته ويل کيږي يعني وهغه چاته ويل کيږي چي ديوچاله طرفه دقاصدپه توګه وليږل کړسي ، اوپه شريعت کښي وهغه نارينه انسان ته ويل کيږي چي دالله جل جلاله له طرفه وخلګوته لپاره درسولودشرعي احکامو مقررسويوي اونوي شريعت اونو ئ کتاب هم ورکړ سويوي ، اونبي په لغت کښي په ډيرومعنا وو راغلئ دئ.

اول طريق ، لار، دوهم مخبر، خبرورکونکئ ، دريم مرفوع ، لوړکړسوئ، څلورم مرتفع، لوړ .

اوپه شريعت کښې نبي وهغه نارينه انسان ته ويل کيږي چي الله پاک لپاره دشرعي احکامووخلګوته مقررکړيوي عام له دي څخه چي صاحب دنوي شريعت اودنوي کتاب يې هم ګرځولئ وئ اوکه يې نه وي ګرځولي بلکي دمخکښې نبي دشريعت تبليغ کوي نظرودغه بيان ته دنبي اودرسول رسول خاص دئ اونبي ترعام دئ اودا مشهورقول هم دئ اوځني علماء دنبي اودرسول په منځ کښې تباين ثابته وي اوځني ددوی دواړو په منځ کښې دعموم اوخصوص من وجه نسبت ثابتوي اوځني رسول ترنبي عام بولي .

)صلي الله عليه وسلم(

پوسه چي د(صلي) اود(سلم) لفظونه دفعل ماضي معلوم صيغي دي دتفعيل له باب څخه دي چي اصلي معني د(صلي الله عليه ) داده چي، رحمت کړيدئ الله پاک پرده باندي ،اودوسلم اصلي معني په دي ډول ده، اوسالم کړيدئ الله جل جلاله دي يعني نبي عليه السلام، اودلته ددواړو څخه ددعامعني مراد ده په دي ډول چي (صلي الله عليه )په معني ليصل الله عليه ،يعني رحمت دي وکړي الله پاک پرده باندي او(سَلم )په معني دليسلم ده يعني سالم دي وګرځوي الله پاک رسول عليه السلام مراددادئ چي امت دده اودين دده دي الله پاک سالم کړي اويايې داسي معناده چي سلامتيادي نازله کړي الله پاک پرده باندي يعني پردين اوامت دده باندي.

پوسه چي ځينوعلماوو ( صلي الله ) دامرحاضر په معني کړيدئ يعني اللهم صلي عليه ، اودارنګه يې وسلم دتفعيل دباب دامرحاضر په معني ګرځولئ دئ خوځما په فکر داخبره مناسبه نه ده ځکه چي دغه دواړه فعلونه دواحدمذکرغائب صيغي دي نوبايد په معني دامرغائب وګرځولي کړي سي نه دامرحاضر مخاطب..

پرنبي عليه السلام باندي ددردويلوشرعي حکم.

پوسه چي علامه کرخي رحمه الله تعالي فرمايلي دي چي په ټول عمر کښې يوځل درود ويل پرنبي عليه السلام باندي فرض دئ اووروسته بيامستحب دئ او علامه طحاوی فرمايلي دي چي هروخت چي دنبي عليه السلام مبارک نوم ذکرکړسي نودرود ويل پرده مبارک باندي فرض دئ ، امام کرخي فرمايې چي په دغه مبارک ايت کښې چي، صلوا عليه وسلموا تسليما ، امرپه درود ويلو سره راغلئ دئ او امرخو تقاضي دتکرار نکوي بلکي محتمل دتکراردئ اوامام طحاوي فرمايلي دي چي ددرود شريف دويلوحکم پريوه سبب باندي بنادئ چي هغه دنبي عليه السلام دنوم ذکر کيدل دي اودادعلم اصول قاعده ده چي دسبب په تکرار سره مسبب هم مکرر ګرځي

)وقول الله(

پوسه چي دقول لفظ مرفوع اومجرور دواړه ويل کيدلای سي دمرفوعوالي په صورت کښې به دقول لفظ مبتداء سي او مذکوره ايت د انا اوحينا بي خبر سي اويا به دمحذوف فعل فاعل سي اودعبارت تقدير به دي ډول سي ويدل عليه قول الله يعني اودلالت کوي پرثبوت دوحي باندي ورسول عليه السلام ته دغه قول دخداي پاک او يامبتداء

دئ خبرېي محذوفه ده اي وفيه قول الله، يعني اوثابت دئ په اثبات کښي دوحي ورسول عليه السلام ته داقول دخداي پاک، دغه ټول صورتونه پردي تقدير باندي دي چي دباب لفظ منوّن يا موقوف وويل کړسي اودمجرور والي په صورت کښي به دغه قول دباب دلفظ پرمضاف اليه جمله باندي معطوف سي اوتقديربه په دي ډول سي ،وباب ذکرقول الله عزوجل، يعني اودارنگه دغه باب دذکرکولوددي قول د خداي پاک دئ چي ،اناأوحينا الخ ، ځني علماء دذکردلفظ پرځاي دمعني دلفظ تقدير کوي خوزما په فکردغه تقدير مناسب نه دئ ځکه چي په دغه باب کښي دمذکوره ايت دمعني بيان نه دئ سوئ.

همدارنگه پوسه چي د، وقول الله ، لفظ دکيف ترلفظ هم نه سي لاندي کيدلای ځکه چي قول دالله جل جلاله کيفيت نلري ځکه چي کيفيت له اعراضوڅخه دئ او دالله جل جلاله ذات اوصفات محل داعراضو نه دي ځکه چي اعراض ټول حادث دي اوذات اوصفات د الله جل جلاله قديم دي.

دمذکوره ايت له راوړلوڅخه دامام بخاري مقصد.

پوسه چي په دغهباب کښي ددغه ايت له راوړلوڅخه دامام بخاري مقصدمتعددامورديْ،اول امر دادئ چي په قصد دتبرک يې راوړيدئ ،دوهم امردادئ چي په راوړلوسره ددغه ايت ددي خبري ښه وضاحت راسی چي ونبي عليه السلام ته وحي دنبوت اودرسالت وحي وه ، اودريم امردادئ چي امام بخاري رحمه الله تعالي په دغه ايت سره اثبات دوحي ورسول عليه السلام ته کړيدئ.

په ذکرسوي ايت کښي دحضرت نوح عليه السلام بالخصوص ذکر په څه وجه سويدئ اوادادم عليه السلام ذکرېي سره له دي چي هغه ترټولو مقدم اواول نبي وونه دئ فرمايلئ ؟

ددغه سوال په مختلفوجوابوسره جواب سويدئ.

اول دا چي حضرت نوح عليه السلام اول دمرسلوانبياوودئ کوم چي اصحاب د جديدجديد شريعت وه ځکه حضرت ادم اوحضرت شيث اوحضرت ادريس علي نبينا وعليهم السلام که څه هم نبيان وه مگررسولان نه وو، خودغه جواب په دي وجه کمزورئ بلل سويدئ چي داخبره غيرمسلمه ده چي ادم عليه السلام صاحب دشريعت نه وو اودوهم جواب دذکر سوي سوال په دي وجه سويدئ چي حضرت نوح عايه السلام اول له هغونبيانو څخه دئ کوم چي قومونه يې دايمان د نه راوړلو په وجه دالله پاک په عذاب سره هلاک سويدي ، نوپه دي کښي درسول عليه السلام دوخت وکفاروته اشاره سويده چي که تاسي دحضرت محمدصلي الله عليه وسلم نبوت ونه منئ نوتاسي به هم دالله جل جلاله په عذاب سره هلاک سي او قابيل که څه هم دحضرت شيث عليه السلام په زمانه کښي شيث عليه السلام دادم عليه السلام دوصيت مطابق په قتل ورساوه خوهغه يوسړي وو اوسره له دي چي په اسماني عذاب سره هم نه دئ هلاک سوئ بلکي حضرت شيث عليه السلام دي قتل کړ،دارنگه نور جوابونه هم سته چي ذکرکول يې مفضي دتطويل گرځي.

## شرح فضل الباری (۷) برخه، د بخاری شریف د اول حدیث لفظي ترجمه او د هغه په اړه مهم تحقیقات

محترموورونوپه دغه (۷) برخه کښې وتاسي ته دبخاري شریف داول حدیث کوم چي د(انماالاعمال بالنیات) حدیث دی معنی اولفظي ترجمه په داسي ډول درته کوم چي عالِم اوبې علمه هریو کامله فایده ورڅخه اخستلای سی اودارنګه په دي برخه کښې دمذکورحدیث په اړه ځیني مهم اوضروری تحقیقات درته کوم اوددغه مبارک حدیث دالفاظوتحلیل اوتشریح اودارنګه له دغه حدیث څخه مستنبطي سوی مسئلې اوځیني سوالونه اودهغوی جوابونه به په اتمه برخه کښې انشاء الله درته راسي،

ـــــــــــــــــــــــــــــــــ الحد یث الاول

لفظي ترجمه:

(عن علقمه) له علقمه څخه (ابن وقاص اللَّیثي)چي ځوی دوقاص لیثي دی روایت دی (یقول)چي ویل به ده ( سمعت) چي اوریدلي دی ما (عمر) له عمرڅخه (ابن خطاب)چي ځوی دخطاب دئ (رضي)راضي دي سي (الله)خدای پاک (عنه)له ده څخه یعني له عمرڅخه (علی المنبر)پرمنبرباندي یعني پرمنبرباندي دمسجدنبوي (قال) چي وویل ده یعني عمر : (سمعتُ) واوریدل ما یااوریدلی دی ما ( رَسُولُ )له رسول څخه( الله)دخدای پاک( صَلَّي) رحمت دی وکړی ( اللهُ) خدی پاک( عَلَیْهِ)پرده باندی( و)او(سَلَّم)سالم دی کړی الله پاک دَیْ یعنی دین ا وامت دده له هرقسم افاتو څخه (یَقُوْلُ)چي ویل ده یعني په داسي حال کښې چي ویل رسول علیه السلام: (اِنَّمَا)خاص داخبرده یا(اِنَّمَا)بیشکه،په تحقیق سره (الْأَعْمَالُ)عملونه یعني ثواب دنیکوعملو ( بِالنِّیَّاتِ)په نیتوپوري یعني ثواب دنیکوعملودنیستي اودهستی یا په بل تعبیر دوجوداو دعد م په اعتبارپه نیتوپوري مربوط اوتړلی دی په دي ډول چي که نیت سم اوصحیح ؤنوبیادنیک عمل ثواب سته اوکه نیت خراب ؤنوبیادنیک عمل ثواب نسته ، (وَاِنَّمَا) اوخاص داخبرده ( لِکُلِّ اَمْرِئٍ) هرسړی لره یعني سته هرسړی لره ( مَا) هغه شي، هغه حاصل یعني له عمل څخه دده (نَوَی) چي نیت کړیوی ده یعني دهغه شي په عمل خپل کښې، (فَمَنْ) نوهرڅوک که ( کَانَت) ؤو (هِجْرَتُهُ) هجرت دده یعني له دارڅخه دکفرودارته داسلام یاله مکي مکرمي څخه ومدیني منورې ته (اِلَی دُنْیَا) ودنیاته یعني دپاره ددنیا (یُصِیْبُهَا) چي حاصله کړی هغه دنیایعني ددي پاره هجرت وکړي چي دنیا حاصله کړي (اَوْ) یا (اِلَی اِمْرَأَةٍ) ویوې ښځي ته یعني یا وو هجرت دده دپاره دیوي ښځي( یَنْکِحُهَا)چي په نکاح کړي هغه ښځه (فهِجْرَتُهُ) نوهجرت دده (اِلَی مَا) وهغه ته یعني ثابت دی وهغه ته (هَا جَر) چي هجرت کړیدی ده (اِلَیْه ) وهغه ته یعني لکه څرنګه چي ده په خپل نیت کښې په هجرت کولوکښې ددنیاحاصلول یاله یوي ښځي سره نکاح کول خپل اصلي هدف ګرځولی دی‌نودارنګه دخدای اودرسول په نزدهم دغه هجرت دده ددنیایادښځي دپاره بلل کیږي اوپه اخرت کښې به بې نتیجې اوغیرمقبول وی(

علمی څیړنی:

د (رضی الله عنه) بیان

،، پوسه چی دلته دری قسمه لفظونه دی اول( صلاة اوسلام) دوهم( رضی الله عنه) دریم( رحمة الله علیه)علماؤ ،په دی باره کښی اختلاف دی چی دغه دری سره لفظونه دهرچاله نامه سره ویل کیدلای سی یعنی که نبی او رسول وی او که تابعی وغیره وی اوکه په دی کښی تفصیل اوتقسیم دی، دامام احمدبن حنبل رحمه الله مسلک دادی چی دغه دری سره لفظونه دهرچاله نامه سره ویل کیدلای سی اودامام اعظم اودامام مالک اودامام شافعی رحمهم الله مسلک دادی چی دلغوی معناګانو په اعتبارکه څه هم ددغودروسرو لفظوویل دهرچا په باره کښی صحیح کیدلای سی مګرپه عرف کښی دشرعی صلاة اوسلام تررسول الله صلی الله علیه وسلم پوری خاص دی اورضی الله عنه ویل ترصحابه ؤ پوری خاص دی اورحمة الله علیه له ماسوی دصحابه ؤسره لکه تابعین وغیره ویل کیږی،، انظرتقریر بخاری،،

له ترجمة الباب سره ددغه حدیث مناسبت

پوسه چی ددغه حدیث دمناسبت په اړه له ترجمة الباب سره علماؤمتعددقولونه ذکرکړیدی چی بیان یې په دی شرحه دی اول قول دادی چیدغه مبارک حدیث داسلام پیغمبر په مدینه کښی دوحی دظهوراودنصرت په ابتداکښی فرمایلی دی نوله ترجمة الباب سره یی مناسبت دادی چی باب خودبدءالوحی دی اوحدیث دبدءظهورالوحی په موقع کښی ویل سوی دی دوهم قول دادی چی دغه حدیث پرهجرت باندی مشتمل دی کوم چی مقدمه دوحی ؤوځکه چی دوحی ترشروع دمخه به داسلام پیغمبر وغارحراته داعتکاف دپاره هجرت کاوه دریم قول دادی چی دغه حدیث امام بخاری په قصددخطبی ویلی دی اوپه دی مقصد یې نه دی ویلی چی دترجمة الباب اثبات په وکړی دغه دری سره قولونه صاحب دعینی ذکرکړیدی خوځماپه فکریوهم په زړه پوری قول نه دی څلرم قول دادی چی دغه مبارک حدیث امام بخاری ددی دپاره راوړی دی چی عالمانوا وطالبانوته په تعلیم اوتعلم کښی دحسن نیت تعلیم ورکړی اوپنځم قول دادی چی شرعی عملونه لکه روژه لمونځ وغیره دوه طرفه لری یوطرف یې دادی چی الله جل جلاله په دغو کاروسره بندګان مکلف کړیدی اودوهم طرف یې دادی چی دغه کارونه بندګان کوی اوورڅخه صادرېږی نوداول طرف مبدأ یې وحی ده اوددوهم طرف مبدأیې حسن نیت دی شپږم قول دادی چی ددغه حدیث دترجمة الباب ددوهم جزء سره کوم جی مذکوره ایت دی مناسبت موجوددی هغه دادی چی په دغه حدیث سره امام بخاری دیوداسی قسم وحی مثال پیش کړیدی کوم چی هغه دټولوانبیاؤپه منځ کښی مشترک ؤ ځکه چی ټول انبیا په اخلاص اوپه حسن نیت سره مامور وه دغه راز نورقولونه هم سته خوځماحقیرپه فکرکښی یوهم په کامل ډول په زړه پوری نه راځی دغه راز اکثرځایونه په بخاری شریف کښی دحدیث اودترجمة الباب دمناسبت پیداکول دنس خوږ وی البته ځما به ناچیز فکرکښی داخبره راګرځی چی دامام

بخاری رحمه الله ددغه حدیث له راوړلو څخه مقصد دادئ چی دغه وحیی چی زه اوس دهغی اودهغی دبدء کیفیت درته بیانه وم دایوداسی امر دئ چی په هغه سره چی هرڅه ثابت سویدی نو په هغوی سره عمل کول هلته دخدای اودرسول پ نزد داعتباروړدی چی په حسن نیت سره وی اوطرز دراوړلوددغه حدیث دلته طرزدجملی معترضی دی، ددغه مبارک، حدیث دشان ورودبیان ، پوسه چی دقران کریم کوم ایت یاسورت چی دکوم خاص سبب په وجه نازل کړسوی وی نووهغه سبب ته په عرف کښی شان نزول ویل کیږی اورسول الله صلی الله علیه وسلم چی کوم حدیث دیوه خاص سبب په وجه فرمایلی وی نو وهغه سبب ته شان ورودالحدیث یا موردالحدیث یاسبب دورودالحدیث ویل کیږی اولکه څرنگه چی دقران کریم د ایاتواودسورتو دپاره شان نزول ضرورندی بلکه ډیرایاتونه له الهی لوری څخه په داسی حال کښی نازل سوی دی چی کوم خاص سبب دنزول نلری اوداسی نده لکه چی دځینو علماؤچی فکر اوگمان دئ چی دقران کریم هرایت اوسورت شان نزول لری حتی یوه عالم ویوه ویب سائټ ته کوم چی زموږ تفسیر فضل الرحیم پکښی خپریږی لیکلی وه چی کشکی دایاتوشان نزول هم پکښی بیانیدلای دغه خبره ده دهمدغه فکر په سبب کړیوه ورنه موږ په تفسیرکښی دشان نزول مکمل رعایت په نظرکښی نیولی دی.بهر حال دنبی علیه السلام حدیثونه هم په همدغه ډول دی چی ځنی یی خاص سبب دورودلری اوځنی یی نلری اودغه مبارک حدیث دهغواحادیثوله جملی څخه دئ کوم چی سبب دورودیی سته چي بیان یی دادئ چي عینی ذکرکړیدي چی له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چی ده فرمایلی دي چي په موږکښي یوه نفرله یوي ښځي څخه کومه چي دام قیس په نامه سره یادیدله دنکاح مطالبه وکړه نوهغي له ده سره په نکاح کولو کښي داقید ولگا وه چي دَیْ به ومدیني ته هجرت کوي نوبیا ده هجرت وکړاوام قیس هم له ده سره دشرط دموجوجودیت په وجه نکاح وکړه نوبیابه موږ ودغه سړي ته مها جر ام قیس وایه یعني نوپه دي سبب رسول علیه السلام دغه حدیث وفرمایه ددغه سړي اصلی نوم هیچا ندئ ذکر کړئ البته دام قیس په باب داخبره شارحینو ذکرکړیده چي عیله نومیدله.داخودبخاری شریف دشارحینوویناوه مگرزما په فکرکښی داخبره راگرځی چی کله چی رسول علیه السلام اوځنی اصحاب ومدینی ته په هجرت ورغله نودمدینی انصاروله دوی سره داسی همکاری پیل کړه چی په خپلوجایدادوکښی ئی دوی له خپلوځانوسره گډکړل اوچی چابه دوې ښځی درلودلی نویوه بی دمکی ویوه مهاجرته ورطلاقه کړه نوپه دغه وخت کښی داخطره پیدا سوه چی مباداداسی پیښه نسی چی ډیرخلگ په دی نیت ومدینی ته هجرتونه راپیل کړی چی دنیا اویاښځه حاصله کړی نوپه دی وجه دیوه داسی نبوی فرمان وصادره ولوته ضرورت ؤچی په هغه سره دداسی کارو مخنیوی ؤسی،

،دتعارض دفع کول،،

پوسه چی ددغه مبارک حدیث اودیوه بل مبارک حدیث ترمنځ یوقسم تعارض موجود دی.چی بیان یې په دی ډول دی.چی نسايي وغیره یوداسی روایت ذکرکړیدی.چی حضرت ابوطلحه رضي ا لله عنه له حضرت ام سلیم څخه ددی غوښتنه وکړه چی له ده سره نکاح وکړی نوام سلیم په جواب کښی ورته وویل چی قسم په خدای دی ای

ابوطلحه چی ته داسی څوک نه یې چی غوښتنه دی قبوله نکړه سی مګر ته کافرې اوزه مسلمانه یم نوداوماته حلال اوجائز ندی چی له تاسره نکاح وکړم اوکچیری ته اسلام قبول کړی نوزه به له تاسره نکاح وکړم اومهر اوورول څما به ستادغه اسلام قبلول وی اوبل هیڅ شي نه درڅخه غواړم وروسته ابوطلحه مسلمان سواوام سلیم له ده سره نکاح وکړه نودلته خوابوطلحه له ام سلیم سره دنکاح کولوپه وجه اسلام قبول کړاودغه مسلمانیدل دده دام سلیم ورول سو،سره له دی چی دغه اسلام قبلول دده دخدای اودرسول په نزدهم معتبرکړسواوحال دادی چی دانماالاعمال دحدیث په مقتضی باید دده اسلام نه وای صحیح سوی څکه چی هجرت کول خوپه درجه کښی تراسلام راوړلوډیرکښته دی نوچی هجرت دفاسدنیت په وجه باطل ګرځی نو اسلام قبلول په فاسدنیت سره خوبیخی باید صحت ونلری علامه بدرالدین عینی ددی سوال متعددجوابونه کړیدی اول په دی ډول چی دابوطلحه په حدیث کښی داخبره نسته چی ده له ام سلیم سره دنکاح په وجه اسلام قبول کړچی دهجرت له حدیث سره معارض سی بلکه صرف دغه خبرپکښی راغلی ده چی ام سلیم ترهغه پوری دده له نکاح څخه منعه وکړه چی ودته الله پاک هدایت کاوه او واسلام راوړلوته یې بی له کوم دنیوی مطلب څخه رغبت پیداسواواسلام یې قبول کړنووروسته ام سلیم له ده سره نکاح وکړه اودوهم په دی ډول چی ابوطلحه دنوررواصحابوپه شان په خپل شوق اورغبت سره اسلام قبول کړ البته په تبعی ډول یې دغه خبره هم په خیال کښی وه چی مسلمان سم نوبیابه له ام سلیم سره نکاح کوم او دریم په دی ډول چی دغه حدیث دابوطلحه صحت نلری څکه چی دمسلمانو ښځودنکاح حرام والی له کافرانوسره دحدیبیې دصلحی له واقعی څخه وروسته اودمکی شریفی ترفتحی دمخه نازل سویدی اودام سلیم اودابوطلحه دنکاح واقعه خوډیره پخواپه مکه کښی رامنځ ته سویوه اوپه هغه وخت کښی دمسلمانی ښځی نکاح کول له کافرسړی سره رواوه نوبیاڅنګه ام سلیم ودته ویل چی څما نکاح له تاسره نده جائزه څکه چی ته کافریی اوزه مسلمانه یم

له دي ځایه پرته په بخاري شریف کښی څوځایه ددغه حدیث روایت سویدی ؟

پوسه چي دغه مبارک حدیث په بخاري شریف کښي شپږځایه نور ذکرسویدی سره له اختلافه دشیوخو اول په کتاب الایمان کښي دوهم په کتاب العتق کښي دریم په باب دهجرت دنبی علیه السلام کښي څلورم په باب دنکاح کښي پنځم په کتاب الْاَیمان والنذور کښي شپږم په باب دترک دحیلوکښي،

له بخاري څخه ماسوی په نورو کوموکتابوکښي ددغه مبارک حدیث روایت سویدی؟

جواب، په دغوکتابو کښي ئي ذکر راغلي دي، اول په مسلم شریف کښي په اخیردکتاب الجهادکښي اودارنګه ابوداودبیهقي دارقطني او داسي په نوروټولومعتبروکتابودحدیثوکښي دغه مبارک حدیث مذکوردی البته امام مالک صاحب یی په موطا کښي روایت ندی کړی ،،بیان داختلاف دالفا ظوددغه حدیث،،پوسه چي دغه مبارک

حدیث په څلور قسمه الفاظوسره روایت کړسویدی په دي شرحه اول انما الاعمال باالنیات دوهم الاعمال بالنیة دریم العمل بالنیة څلرم الاعمال بالنیة،

د دغه مبارک حدیث نوعه څه ده؟ یوسه چي دغه مبارک حدیث دابتداء دسندپه اعتبار فرد غریب دی او د سند د اخیر په اعتبار مشهوردئ او ځینوعلماؤمتواتربللی دی خوداقول صحیح نه دی ځکه ددغه حدیث دسندبیان په دي ډول دی چي په صحابه ؤ کښي تنهاعمررضي الله عنه له رسول علیه السلام څخه ددغه حدیث روایت کړیدی اوله حضرت عمرڅخه بیاتنهاعلقمه ددغه حدیث روایت کړیدی اوله علقمه څخه بیاتنهامحمدبن ابراهیم ددي حدیث روایت کړیدی‌اوله محمدبن ابراهیم څخه یې بیا تنهایحي بن سعیدانصاري روایت کړیدی‌له یحي څخه بیاله دؤسووڅخه زیاتوانسانانوددغه حدیث روایت کړیدی‌نوځکه متواترخوبیخي نسي کیدلای البته نسبت واول دسندته غریب اونسبت واخیرته مشهوردی،،

ددغه حدیث دعظمت دشان په باره کښي علماؤڅه ویلي دي،یوسه چي ابوبکربن داسه ویلي دی چي له ابوداودڅخه مي واوریدل چي دانسان دپاره دده ددین په باره کښي دغه څلورحدیثونه کافي اوشافی دی،اول حدیث د(الاعمال بالنیات)دوهم حدیث د(الحلال بین والحرام بین)اخرجه البخاری ومسلم في کتاب المساقاة والنسائي وترمذي کلاهما في کتاب البیوع وابن ماجه في کتاب الفتن، دریم حدیث د(ومن حسن اسلام المرءترکه مالایعنیه) اخرجه الترمذی في کتاب الزهد وابن ماجه فی کتاب الفتن، څلرم حدیث د(لایکون المؤمن مؤمنا حتي یرضی لاخیه ما یرضی لنفسه )داخیري حدیث په بدل کښی صاحب دفتوحات ربانیه دغه حدیث ذکر کړیدی (ازهد في الدنیا یحبک الله ) اخرجه ابن ماجه في کتاب الزهد، داول حدیث معني خوپه مختصرډول تیره سوه اوتحقیق یې انشاءالله راروان دی‌اوددوهم حدیث خلاصه مطلب دادی چي داسلام پیغمبرفرمایلي دي چي قطعي اومشهورحلال اوحرام خووهرچاته ښکاره دی خودحلالواودحراموپه منځ کښي داسي مشتبه اوپوشیده شیان سته چي وانسان ته یې په ښکاره ډول بدوالی نه معلومیږی نوهرڅوک چي له دغه رازپوشیده شیانوڅخه ځان وساتي نوپه تحقیق سره ده برائت اوپاکوالی خپل دین اوخپلی آبرولره حاصل کړاوددریم حدیث مطلب دادی چي داسلام پیغمبرفرمایلي دي چي که یوڅوک غواړی چي دده اسلام حسن ،نیک اوښائسته وګرځي نودَيْ دي له هرهغه کارڅخه ځان ساتي اوپریږدي دي کوم چي له ده سره مناسب نه وي او بې فایدې اوعبث کاروی اودڅلورم حدیث مطلب دادی چي ترهغه پوری هیڅ یوسړی کامل مومن نسي جوړیدلای ترڅوچي په ده کښي دغه صفت موجودیږی چي دخپل مسلمان وروردپاره هغه شي خوښوي کوم چي دخپل ځان دپاره یې خوښوي اودپنځم حدیث مطلب دادئ چي له دنیاڅخه بې رغبته سه نو به الله جل جلاله له تاسره محبت وکړی اوتابه دخپل ځان دوست وګرځوی،،اوقاضی عیاض رحمه الله فرمایلی دی چی دحدیثواماموندانماالاعما ل الخ حدیث داسلام پوره دریمه برخه بللې ده ځکه چی په دغه حدیث کښی دنیت ذکر راغلی دی اواسلام جوړله دریوشیانو څخه دی قول اوفعل اونیت اوامام شافعی فرمایلی دی،، ان هذاالحدیث یدخل فیه نصف العلم ،،یعنی په دغه حدیث کښی نیمَی برخه دعلم دین

داخله ده توجيه دقول دامام شافعی رحمه الله داده چی عملونه دوه قسمه دی اول هغه دی چی ترظاهری اندامويوری تعلق لری اودوهم قسم ئی دادی چی ترزړه پوری تعلق لری او نيت له دوهم قسم عملو څخه دیامام عبدالرحمن بن مهدی فرمايلی دی چی هرڅوک چی اراده دجوړه ولوديوه کتاب وکړی نودی بايد ابتدادکتاب په دغه حديث وکړی امام خطابی فرمايلی دی چې زموږ متقدمينومشائخوبه دامستحب ګڼله چی دغه حديث دهرشی په سرکښی راوړل کيږی ،،انظر عينی وکتاب الاذکار واعلام الحديث وفتوحاتربانيه،، اوامام احمدرحمه الله فرمايلي دي چي اصول داسلام دري حديثونه دی اول حديث د(انماالاعمال بالنيات) دوهم حديث د(الحلال بين والحرام بين) اودريم داحديث (من احدث في امرنا هذا ماليس منه فهورد)اخرجه البخاری فی کتاب الصلح ومسلم في کتاب الاقضية وابوداودفي کتاب السنة وابن ماجه في المقدمة دذکرسوی حديث دالفاظو ترتحقيق دمخه کوم چي په اتمه برخه کښي به انشاءالله درته راسي ويوڅونوروممهو خبروته متوجه سی اوله خبرداده چي مقدسي په شروط الائمة الستة کښي صفحـ٧١ــه ، اوحازمی په شروط الائمة الخمسة کښي صفحـ٧٣ــه، ذکرکړيدي چي امام حاکم فرمايلي دي چي امام بخاري په بخاري شريف کښي داسي حديث نه دي راوړی چي هغه دي غريب وي يعني په يوه مرحله له مرحلوکښي دي دده راويان تردووکم وی مګردحاکم دغه قول علماؤردکړيدی

اول په دغه ذکرسوي حديث سره دوهم په هغه حديث سره چي دبخاري د ټولواحاديثوپه اخرکښي راغلی دیچی الفاظ ئی دادی کلمتان حبيبتان الی الرحمن ثقيلتان فی الميزان خفيفتان علی اللسان سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم ځکه چي دغه دواړه حديثونه غريب دی داول حديث دغرابت بيان مخکي تيرسواودوهم حديث دغرابت بيان دادی چي له رسول عليه السلام څخه تنهاابوهريره رضي الله عنه دهغه روايت کړيدی اوله ابوهريره څخه تنهاابوزرعه اوله ابوزرعه څخه بياعماره بن قعقاع اوله عماره څخه بياتنها محمدبن فضيل ددغه حديث روايت کړيدي اوله محمدبن فضيل څخه وروسته يې بياراويان ډيرسويدی اوحازمي په خپل کتاب شروط الائمة کښي دپاره دابطال ددغه قول ځان ته باب ايښی دی اوحافظ ضياء مقدسي په دي باره کښي يو کتاب جوړکړيدی کوم چي غرائب الصحيحين يې نوم دی اوتردؤسوو(٢٠٠)زيات غريب اوفردحديثونه کوم چي په صحيحين کښي راغلي دي په دغه کتاب کښي ذکرکړيدي اوودغه قسم معلوماتوته ددي دپاره ضرورت سته چي داحاديثودتعارض اودترجيح په وخت کښي په نفعه تماميږی دوهمه خبره داده چي د (انماالاعمال ...الخ)د حديث په اړه يوه تعجبی پيښه داده چي سره له دي چي حضرت عمردغه مبارک حديث پرمنبرباندی په عامه مجمع کښي ويلی دی مګرله علقمه څخه پرته بل هيچا ددغه حديث روايت له ده څخه نه دی کړی اودارنګه رسول عليه السلام هم دغه مبارک حديث په عامه مجمع کښي فرمايلی دی ځکه چي په بخاري شريف کښي ددغه حديث اوه ځايه روايت سويدی چي اخري روايت يې په باب ترک الحيل کښي کړيدی کوم چي دسرالفاظ يې په دي ډول دي(ياايهاالناس انماالاعمال باالنيات..الخ)اوسره له دی چی له عمررضی الله عنه څخه پرته ئی بل هيچاله رسول عليه السلام څخه روايت ندی کړي دريمه خبره داده چي امام بخاري په خپل دغه کتاب کښي دهغه روايت اوحديث ذکرترټولو احاديثوړومبی کړيدیکوم چي ده يې له حميدی څخه روايت کړيدی داپه دې وجه چي حميدی په نسب کښي قريشي دی

اورسول علیه السلام فرمایلي دي(قدمواقریشاً ولاتقدموها)یعني قریش دمخه کوۍ اوتاسي پرقریشوباندی مه دمخه کیږی اودارنگه حمیدی دمکې دۍ اودوحی ابتداءپه مکه شریفه کښي سویده همداسبب دۍ چي دوهم یې هغه حدیث راوړیدۍکوم چی له امام مالک څخه یې روایت سویدۍ اوامام مالک دمدیني منوري دۍ اودوحي دوهم مهبط هم مدینه منوره وه ،، ومن الله توفیق

## بخاری او شرح فضل الباری،۱۲، برخه

الحدیث الثانی

محترموورونږوپه دغه برخه کښې دبخاری شریف ددوهم مبارک حدیث متن سره له اعرابه اوسره له حرکاتواوسکناتواوسره له لفظی ترجمې په ډیره اسانه اونایابه طریقه سره درته وړاندی کوم،اول دحدیث متن ته ګوری اودالفاظودحدیث حرکتونه وغیره وپیژنی

حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ ا لْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ فَقَالَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ(أَحْيَانًا يَأْتِينِيْ مِثْلَ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ وَهُوَ أَشَدُّهُ

عَلَيَّفَيُفْصَمُ عَنِّيْ وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ، وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي فَأَعِيْ مَا يَقُولُ ، قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ فَيَفْصِمُ عَنْهُ وَاَنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًاً).۳۰۴۳(

لفظی ترجمه

،(حدث)حدیث وکړ،خبروکړه،(نا)وموږته یعنی امام بخاری فرمائې چی وماته سره له نوروملګروځما خبرراکړ،عبدالله،عبدالله ،ابن،چی ځوی،یوسف،دیوسف دی(قال)وویل ده یعنی عبدالله وموږته (اخبر)چی خبرراکړ(نا)موږته یعنی وماأوزما وملګروته،مالک،مالکینی کوم چی یوله څلورواماmونوڅخه دی(عن)له ،هشام،هشام څخه(ابن) چی ځوی،عروه،دعروه دی (عن)له (ابی) پلارڅخه(ه)دده(عن)له،عائشة،عائشې څخه(ام)چی مور(المؤمنین)دټومومنانوده (رضی)راضی دی سی(الله) خدای پاک (عن)،له(ها) دې څخه(ان) چی په تحقیق سره،الحارث،حارث(ابن) چی ځوی ،هشام،دهشام دی (سال)سوال وکړ،پښتنه وکړه،ده ینی حارث(رسول)له رسول څخه( الله) دخدای ،(صلی) رحمت دی وکړی(الله)خدای پاک(علیه)پرده باندی(و)او(سلم)سالم دی کړی دی یعنی الله پاک یعنی رسول علیه السلام دی سالم کړی له ټولوآفاتواوهرقسم تکلیفوځخه (ف) نو(قال)وویل ده یعنی حارث (یارسول الله) ای رسول دخدایه (کیف)څرنګه( یأتی)راځی(ک)وتاته(الوحی)وحی (ف)نو(قال) وویل (رسول) رسول (الله) دخدای(احیاناً)چی کله کله،په بعضی وختوکښ،، (مثل)په مثل یاپه مثل کښی (صلصلة)داواز (الجرس)دجرس،یعنی دژزنګولې (و)او(هو)دغه یعنی دغه قسم دوحی (اشدّ)ډیرسخت دی یعنی ډیرسخت قسم دی(ه)دده یعنی دوحی(علی)پرمابانډی(ف)وروسته( یفصم)قطع کېږی دغه یعنی دغه وحی یاسختی دوحی (و)حال داوی (قد)چی په تحقیق سره(وعیت)په یادکړئ وی ما (عن)له(ه)ده څخه یعنی له وحی راوړونکی څخه یاله وحی څخه (ما)هغه(قال)چی ویلی وی ده یعنی وحی راوړونکی وماته یعنی په داسی حال کښی وحی قطع سی چی ماټوله

له وحی راوړونکی څخه چی فرشته ده یاده کړې وی(و)او(احیاناً) په ځینووختوکښی (یتمثل)گرځی (لی)مالره یادپاره ځمایعنی دپاره داسانی ځما(الملک) فرشته(رجلا) په مثل دسړی (ف)بیا(یکلم)خبره کوی دی یعنی فرشته په وحی سره (نی)له ماسره (ف)نو(اعی)یاده وم زه (ما)هغه څه (یقول) چی وایې دَیْ یعنی ملکه هغه څه وماته(قالت)وویل یعنی عروه ویلی دی چی وویل وماته ،عائشة،عائشې رضی الله عنهاچی(و)او(ل)خامخایعنی قسم کوم چی خامخا(قد)په تحقیق سره(رأیْ)ولیدی(تُ)ما(ہُ)دَیْ یعنی رسول علیه السلام (ینزل) چی نازلیدله(عَلَیْ)پر(ہ)ده باندی(الوحی) وحیه (فی)په(الیوم) ورځ کښی(الشدید)سخته (البرد) دیخوالی سړوالی یعنی په داسی ورځ کښی چی یخوالی ئې ډیرسخت وو (فَ)بیا،وروسته،(یفصم)قطع کیدله دایعنی وحیه (عن)له(ہُ)ده څخه(و)حالداوو(انّ)چی په تحقیق سره (جَبِیْنَ)تندَیْ(ہُ)دده (لَ)خامخا(یتفصد) بهیدی(عرقاً)له خولوڅخه یاپه حیث دخولویعنی په سخته خن کښی دوحی دشدت اوسختی په وجه دده مبارک له تندی څخه داسی په زورسره خولې رابهیدلې لکه یوانسان چی فصداو رگ ووهی اوپه زوراوقوت سره وینه ورڅخه راوبهیږی،په راتلونکوبرخوکښی به ددغه مبارک حدیث په ارتباط علمی څېړنی اوتحقیقات ان شاءالله درته راسی،

ومن الله التوفیق تمت

## بخاري اوشرح فضل الباري ۱۷برخه،۳حدیث

محترمووروڼودبخاری شریف ددغه دریم مبارک حدیث په ارتباط په په مختلفوبرخوکی دامطلبونه درته راسی ،۱،ددغه مبارک حدیث لفظی ترجمه کومه چی په اول قدم کی مهم مطلب دی دوهم دحدیث دالفاظوعلمی تحقیقات دریم دمومن دخوبوتحقیق څلرم دانبیاؤدخوب حکم پنځم له حدیث څخه مستنبط مسائل شپږم دخلوت حکم اوفائدې ،اوم دجبریل ددرې واره نیولوپه غیړکی رسول علیه السلام لره حکمت وغیره په دې برخه ددریم حدیث ټول متن اودحدیث له ابتدا څخه بیا دحدیث تردغه عبارت پوری چی(فجاءه الملک) لفظی ترجمه درته وړاندی کېږی

-3حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ أَنَّهَا قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا حَتَّى جَاءَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ قَالَ مَا أَنَا بِقَارِئٍ قَالَ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ قُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ اقْرَأْ فَقُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِئٍ فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ ثُمَّ أَرْسَلَنِي فَقَالَ{اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ}فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ فَدَخَلَ عَلَى خَدِيجَةَ بِنْتِ خُوَيْلِدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَقَالَ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَزَمَّلُوهُ حَتَّى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ فَقَالَ لِخَدِيجَةَ وَأَخْبَرَهَا

الْخَبَرَ لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي فَقَالَتْ خَدِيجَةُ كَلَّا وَاللَّهِ مَا يُخْزِيكَ اللَّهُ أَبَدًا إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ وَتَقْرِي الضَّيْفَ وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ حَتَّى أَتَتْ بِهِ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلِ بْنِ أَسَدِ بْنِ عَبْدِ الْعُزَّى ابْنَ عَمِّ خَدِيجَةَ وَكَانَ امْرَأً قَدْ تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَكَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعِبْرَانِيَّ فَيَكْتُبُ مِنْ الْإِنْجِيلِ بِالْعِبْرَانِيَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَكْتُبَ وَكَانَ شَيْخًا كَبِيرًا قَدْ عَمِيَ فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ يَا ابْنَ عَمِّ اسْمَعْ مِنْ ابْنِ أَخِيكَ فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ يَا ابْنَ أَخِي مَاذَا تَرَى فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرَ مَا رَأَى فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي نَزَّلَ اللَّهُ عَلَى مُوسَى يَا لَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ قَالَ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلَّا عُودِيَ وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ وَفَتَرَ الْوَحْيُ

(1/7)

---

لفظی ترجمه،

-3[حَدَّثَ]حدیث ووایو[نَا]وموږته ،یعنی موږډېرشاګردان ناست ؤ وموږتېولوته حدیث ووایه [یَحْیَی ]یحیی (بْنُ]چی زوی دی [ بُکَیْرٍ]دبکیر[ قَالَ ]وویل ده یعنی یحیی وموږته [حَدَّثَ]چی حدیث ووایو[نَا]وموږته ،یعنی وموږډېرو نفروته [اللَّیْثُ]لیث[ عَنْ ]له [عُقَیْلٍ ]عقیل څخه ،یعنی چی لیث روایت کاوه د دغه حدیث له عقیل څخه [عَنْ]له[ ابْنِ ]زوی څخه [شِهَابٍ] دشهاب،یعنی چی عقیل بیا روایت کاوه ددغه حدیث له زوی څخه دشهاب [ عَنْ ]له [عُرْوَةَ]عروه څخه[ بْنِ ]چی زوی دی[الزُّبَیْرِ]دزبیر[ عَنْ ]له [عَائِشَةَ]عائشې څخه[ أُمِّ]چی مورده[ الْمُؤْمِنِینَ]دټولومومنانو،یعنی چی عروه دزبیر ځوی بیا روایت کاؤ له عائشې رضی الله عنها څخه[ أَنَّ]ددې چی بېشکه [هَا ]دې ،یعنی عائشې [قَالَتْ]وویل[ أَوَّلُ ]چی اول [مَا]دهغه[ بُدِئَ]چی شروع وکړه سوه[ بِهِ]په هغه سره [رَسُولُ ]ورسول ته [اللَّهِ]دخدای [ صَلَّی]رحمت دی نازل کی[ اللَّهُ ]خدای پاک [عَلَیْهِ]پرده باندی [و]او[سَلَّمَ ]سلامتیا دی نازله کی الله پرده باندی [مِنْ ]له [الْوَحْيِ]وحی څخه [ الرُّؤْیَا]خوب لېدنه وه [الصَّالِحَةُ ]صالحه ،یعنی خوشحالی راوستونکې خوب لیدنه [فِي]په[ النَّوْمِ]خوب کی ،،پوسه چی خوب لېدنه خونه وی مګرپه خوب کی خوکله کله درؤیا دلفظ اطلاق پرهغه لېدنه باندی هم کېږی چی په بیداری کی وی لکه چی تفصیل بې په علمی تحقیق کی راسی نوپه دې وجه دلته دفی النوم لفظ راوړل سویدی[ فَ]نو[کَانَ]ؤدَی یعنی رسول علیه السلام[ لَا]چی نه بې[ یَرَی]لېدَله [ رُؤْیَا]هیڅ خوب لیدنه [ إِلَّا ]مګر،یعنی مګرلیدَله بې هغه خوب لیدنه [جَاءَتْ ]چی رابه غله دا،یعنی په داسی حال کی چی رابه غله داخوب لیدنه دده [مِثْلَ ]په مثل [فَلَقِ]دروشنی[ الصُّبْحِ]دسهار ،یعنی نوده مبارک چی به کوم خوب ولیدَیْ نودهغه تعبیربه دسهار دروشنی په څېرواضح اوروښانه ؤ[ ثُمَّ]وروسته،یعنی وروسته له لېدلودداسی خوبو[ حُبِّبَ]خوښ کړسو[ إِلَیْهِ]وده ته[ الْخَلَاءُ]خلوت،ګوښه نشېنی له خلګوڅخه[و]او[کَانَ ]وودَیْ ،یعنی رسول علیه السلام [یَخْلُو]چی خلوت

بې کاؤ[ بِغَارِ]په غار کی [حِرَاءٍ ]دحرا ،چی دیوه غره نوم دی په مکه شریفه کی کوم چی اوس مهال جبل نورورته ویل کېږی [فَ]نو[يَتَحَنَّثُ]تحنث بې کاؤ[ فِيهِ]په ده کی یعنی په دغه غارکی [ وَهُوَ ]دَ یْ ،یعنی تحنث [التَّعَبُّدُ ]تعبددی ،یعنی تحنث وتعبدته ویل کېږی کوم چی په معنا دعبادت کولودی [اللَّيَالِيَ]په شپوکی [ذَوَاتِ]خاوندانی [ الْعَدَدِ ]دشمار،یعنی نوتحنث یې کاؤپه دغه غارکی دحراپه شپومعدودوکی [قَبْلَ]له مخه[ أَنْ ]تردې [يَنْزِعَ]چی رجوع به کوله ده [ إِلَى]وَ[ أَهْلِهِ]اهل ته دده [وَ]او[يَتَزَوَّدُ ]زاد،توښه به اخیسته ده یعنی رسول علیه السلام[لِذَلِكَ ]لپاره دهغه یعنی ده به لپاره دهغه مقدارشپوچی په یوه نوبت به ده مبارک دحراپه غار کی تېره ولی دخوراک اوڅښاک آذوغه له ځان سره اخستله (ثُمَّ) بیابې( يَرْجِعُ)رجوع کوله ده یعنی له غارڅخه( إِلَى)و( خَدِيجَةَ) خدېجې ته( فَ)بیابې(يَتَزَوَّدُ)توښه اخستله ده( لِمِثْلِهَا )لپاره دمثل دهغوشپویعنی بیا چی بې دڅونه شپودتېرېدلوخیال ؤپه غارکی دحرا نوهغونه نفقه بې بیاورسره واخستله (حَتَّى)ترهغه پوری یعنی داسلسله جاری وه ترهغه پوری ( جَاءَ)چی راغی(هُ)وده ته ( الْحَقُّ ) حق یعنی وحی(و)حال داؤ(هُو) چی دَی (فِي )په (غَارِ)غارکی ؤ( حِرَاءٍ)دحراغره،تمت من الله التوفیق